# سيفيت بريلويت
## بمقابله
# حنفيت





تاليف

مناظراسلام جامع المنقول و
المعقول شيخ القران والحديث
حضرت العلامة ابو ابراهيم

رحيم الله الحقاني النجرهاري
الخروتي دامت بركاتهم العاليه



زيرِ اہتمام
اهل السنة والجماعة العالمي
نديم ټريډ سنټر محله جنګي قصه خواني بازار پشاور

## دکتاب ځانګړني

د کتاب نوم: فتنه سيفيت بريلويت بمقابله حنفيت
ليکوال: سلطان المناظرين الشيخ رحيم الله الحقاني الافغاني حفظه الله
کمپوز: فرهاد (دلسوز)
چاپ: لومړی وار.
د چاپ ځای: **اهل السنة والجماعة العالمي**
مسؤل اداره: مولوي هدايت الله بدر
دتر لاسه کولو ځای:نديم مارکيټ محله جنګي قصه خوانی پېښور

## هرمسلمان يي دتغير نه بغيردصدقي جاريي

## په نيت چاپ کولی شي

يادونه:

**د شيخ القران والحديث حضرت مولانا ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الافغاني حفظه الله ټول تصانيف د اهل السنة والجماعة العالمي اداري څخه تر لاسه کولی شئ.**

مسؤل :
مولوي هدايت الله (بدر)
**0348-4319541**
**فرهاد(دلسوذ)**
**03078517886**

دحضرت شيخ القران والحديث حضرت العلامه
رحيم الله الحقاني چاپ شوي کتابونه

- احقاق الحق فى الدفع عن مذهب الحق (٥) جلد.
- احسن التوضيح شرح مشكوة المصابيح (١) جلد.
- احسن الفرائد شرح شرح العقائد.
- عقد اللألى على حاشية الخيالى.
- القول المفيد فى اثبات التقليد.
- د رسول الله صلى الله عليه وسلم لمونځ.
- احكام الغنيمة.
- قواعد المناظره .
- شمس الحكمت شرح هداية الحكمت.
- الروض المكلل شرح مطول.
- فريدة الغواص شرح سلم العلوم.
- فتنه سيفيت بريلويت بمقابله حنفيت.

**د ميلاويدو پته:**

**اهل السنة والجماعة العالمي اداره**

**نديم مارکيټ محله جنګی پيښور**

**مسؤل :**

**مولوي هدايت ال د پير سيف الرحمن دعوى له بدرتپ**

**03484319541**

**فرهاد(دلسوذ)**

**03078517886**

بسم الله الرحمن الرحیم

**حامداًومصلیاً**

امابعد:

**الحمد لله مونږ أهل السنة والجماعة احناف دیوبندیان یو.**

اهل السنة والجماعة

**(سنت) دین او قانون ته وایي.**

**(جماعت) دصحابه وورضی الله عنهم مقدّس جماعت ته وایي.**

اهل السنة والجماعة ددین په تشریح کې خپل عقل دشریعت اودصحابه وورضی الله عنهم دتشریح تابع ګڼي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د(**یوم تبیض وجوه**) په تشریح کې فرمایلی دي چې: تبیض وجوه اهل السنة والجماعة وتسود وجوه اهل البدع والضلالة[1].

حنفی: په اجتهادیاتو کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په رهنمایی کې په دین باندې عمل کوونکي ته حنفی وایي.

د(۱۹۹۴ع) دمردم شماری مطابق په دنیا کې یو ارب او دیرش کروړه مسلمانان وو چې په دوی کې پنځه اتیا کروړه یو ائې احناف وو[2].

(۱):الدرالمنثور جلد(۲) صفحه (۱۱۲).

(۲):دنیا میں فقهی مذاهب کافروغ صفحه (۱۳۱).

الله جل جلاله په (**واخرين منهم لما يلحقوبهم**) کې امام ابو حنيفه رحمه الله ته اشاره کړې ده[1].

دیوبندی:د دین **تکمیل** د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس وشو او اکثره ملکونو ته تمکین یې دصحابه کرامو په لاس وشو او تدوین یې د امام ابو حنیفه رحمه الله په لاس وشو.

لکن په برصغیر او افغانستان کې بعضو خلکو د اصلی دین دبدلولو کوشش شروع کړو ډېرو بدعاتو ته یې دین وویلې.

نو اهل حقو علماوو د دین دحفاظت لپاره د دارالعلوم دیوبند په نوم یوه مدرسه جوړه کړه او هغه مسائل یې جدا کړل چې دین نه وو او خلکو ورڅخه دین جوړ کړی وو حنفیت نه وو او خلکو ورڅخه حنفیت جوړ کړی وو.

**ليميزالله الخبيث من الطيب.**

(۱):تبيض الصحيفة فى مناقب أبى حنيفة صفحه (۳).

دحنفی فقهې دترجيح وجهې

(۱):شاه ولی الله رحمه الله فرمايلي دي چې :ماته نبی عليه السلام راوپېژندله چې حنفی فقهه دمشهورو شرعی نصوصوسره موافقه ده[۱].

(۲): حنفی فقهه تابعی مدونه کړې ده ځکه چې امام صاحب رحمه الله رؤيةً وروايةً تابعي دی،اونوراامامان تابعيان نه دي[۲].

(۳):دحنفي فقهې اصول اوضوابط ديوې شوری په ذريعه مرتب اومدون شوي دي او اراکين دشوری دټولو څخه لوې مفسرين،محدثين،فقهاء اودهرفن ماهرين علماءوو، نوحنفي فقهه جمهوری فقهه ده[۳].

(۴): الله جل جلاله حنفي فقهې ته عام مقبوليت وربښلی دی ددنيا اکثرمسلمانان په حنفی فقهه عمل کوي[۴].

(۵):ددنيادټولومحدثينو سندد امام صاحب رحمه الله په شاګردانو تېرېږي او لويو لويو محدثينو چې دلکونه احاديثوحافظان وو بيايې هم دحنفی فقهې څخه فتوی ورکولې لکه دامام بخاری رحمه الله استاذ عبدالله ابن مبارک رحمه

(۱):فيوض الحرمين صـــــ (٤٧).

(۲): فهرست لابن نديم صــــ (٢٩٨).

(۳): تاريخ بغداد ج(١٢)صـــ(١٠٨) مناقب موفق ج (٢)صـــ (١٣٣) مناقب کردی ج (٢)صـــ (٣).

(٤):الفهرست( ٢٩٩).

الله،وکیع ابن الجراح،یحی ابن سعید القطان ، یحی ابن معین ، یحی ابن ذکریا وغیرهم...رحمهم الله.

(۶):دامام صاحب رحمه الله اجتهاد ډېردقیق وو هېڅ باریک اړخ به ترېنه نه پاتې کېدلو[1].

(۷): په ټولو فقهوکې حنفي فقهه واحده هغه فقهه ده چې تحقیقي اوتقدیري دواړه قسمه مسائل په کې دي،نن صباپه زرګونو مسائل دتقدیري فقهې په رڼاکې حل کېږي.

(۸):دحنفي فقهې مسائل په اسرارو اومصالحو مبني دي.

(۹): په حنفي فقهه باندې دنورو فقهو په نسبت عمل آسان دی.

(۱۰): په حنفي فقهه کې په ټولو احادیثو په یوځای دعمل کوشش شوی دی حتی چې داکوشش هم شوی دی چې ضعیف حدیث هم متروک العمل نه شي.

دحنفي فقهی سره دانګریزانو دوښمنی

زمونږدملکونو افغانستان اوپاکستان اکثریت مسلمانان په حنفی فقهه متحد وو ،لکن کله چې انګریزان هندوستان ته راغلل نود(لړاو اورحکومت کرو) دقانون مطابق یې دحنفي فقهې دوښمنان راپیداکړل یوه ډله یې دویکټوری اهل حدیثوجوړه کړه چې په ښکاره یې دحنفی فقهې سره دوښمني شروع کړه

(۱): طبقات الشافعیة الکبری ج (۲)صــ(۱۷٤).

نو ریې هم ډېرې فرقې جوړې کړې چې په دغه فرقو کې یوه فرقه دبریلویت هم ده چې سیفیت هم ددوی یو شاخ دی.

دسیفیت بریلویت فرقه په دروغو ځانونو ته ماتریدیان او په فروعو کې احناف وایې.

ځکه چې ډېر داسې نوي نوي مسائل یې دځان څخه جوړ کړي دي چې دماتریدیت او دحنفي فقهې سره بلکل مخالف دي ګویا کې چې دحنفي فقهې په مقابله کې سیفیت بریلویت هم یوه مستقله ډله ده.

تعجب!!!

دسیفیانو بریلویانو څخه چې دلمونځ، روژې، زکوة او حج وغیره مسائلو پوښتنه وکړې نو دحنفي فقهې څخه جواب وایې دقرآن او سنت څخه ډاریک (بالذات) استدلال نه کوي.

او چې بیا ددوی دنورو بدعاتو او شرکیاتو مثلاً په حلقو کې درقص، استمداد، علم الغیب، حاضر اوناظر، ذکربالجهر تعبداً،عرس اومروجه محفل میلاد وغیره په باره کې ترېنه پوښتنه وکړې نو بیا دحنفي فقهې دصریحو عباراتو په خلاف فوراً دویکټوري اهل حدیثو په شان دځانونو څخه مجتهدین جوړ کړي دخپل ځان څخه صغری ګانې او کبری ګانې سره یو ځای کوي او خپلې خیالی، بدعي او شرکي نتیجې ورڅخه راوباسي او په قرآن او سنت کې دتحریف یوه سلسله شروع کړي.

او که بیا ورته ووایې چې آیا تاسو دا خپل خود ساخته جدید مسائل دفقهی په کوم معتمد کتاب کې صراحتاًښودلی شئ نو سمدستي دوهابیت ټاپه دربانديې ووهي.

آخرڅه وجه ده چې سیفیان بریلویان حنفی فقهه ناقصه ګڼي ،اوخپلې صغراګانې اوکبراګانې سره یوځای کوي اوسیفۍ بریلوۍ نتیجه ترینه راوباسي؟

ولې خپل خودساخته (سیفیي بریلوي) مسائل دحنفي فقهې په کوم معتمد کتاب کې ښودلی نه شي؟

او ولې یې دحنفي فقهې په مقابل کې نوې متوازي فقهه جوړه کړې ده؟

که په خپلوذهني استدلالاتو شي نوبیا،حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله فرمایلی دي چې هربدعتی اوګمراه دخپلو معتقداتو لپاره کتاب اوسنت مقتدا ګڼي (خپلې ګمراهیانې دکتاب اوسنت څخه ثابتوي) اوپه خپل بې کاره فهم دقرآن اوسنت څخه غیرمطابقی معناګانې رافهموي[1] .

سیفیان بریلویان او دیوبندیان دواړه دحنفیت دعوه کوي نو ولې سیفیان بریلویان په دغو اختلافي مسائلو کې دحنفیت ثالثۍ ته تیارنه دي؟

آیادا ددې واضح دلیل نه دی چې دسیفیانو بریلویانو دحنفیت دعوه دروغ ده؟

په دې مختصره رساله کې به دالله جل جلاله په توفیق سره دا واضحه کړو چې سیفیان بریلویان دنوروبریلویانو په شان په خوله دحنفیت دعوه کوي لکن په زړه کې دحنفیت سره دومره بغض لري لکه څومره بغض چې روافض داهل السنة والجماعة سره لري.

سیفیان بریلویان دنوروبریلویانو په شان په فقهې حنفي پورې دومره افتراګانې کوي لکه څومره افتراګانې چې روافض یې دصحابه کرامو پورې کوي.

(۱): مکتوبات ــــ مکتوب (۲۸۶) دفتراول ج (۲) صــ (۷٦۷).

اوله مسئله
سیفیان بریلویان دي

په افغانستان،کوزه پښتونخوا اوبلوچستان کې چونکې دبریلویت څخه نفرت عام دی لهذا ددې علاقو سیفیان په خوله وایې چې مونږنه دیوبندیان یو اونه بریلویان یو حالانکې ددې علاقودسیفیانو ټول عقائداو اعمال هم دبریلویانو دي اودپنجاب اودسندھ دبریلویانوپه شان دديوبند دأکابرو دتکفیر قائل هم دي.

دلته ددوئ دمناظرینو ویډیواو اډیو بیانونه متواترموجود دي چې دديوبند داکابرو تکفیراوتوهین یې کړی دی.

ددوی مرکزي مناظر دپېښور دبهادرکلي ایازعلی شاه سیفی دبدزبانۍبیانونه ښه عام دي چې مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله ته یې (معاذالله)اشرف علی تاوانی ویلې همدارنګه یې بیابیا داشرف علی تهانوی رحمه الله تکفیرکړی دی .

امام اهل السنة مولانا سرفرازخان صفدر رحمه الله ته یې (معاذالله) خرویلی دی، حکیم اختررحمه الله ته یې معاذالله کافراوزندیق ویلی د ، دشاه اسماعیل شهیدرحمه الله تکفیریې کړی دی او ټول سیفیان ورته ماشاءالله وایې شاباسی ورکوي اوددغوګستاخیانو تائیدیې کوي.

همدارنګه دسیفیانوبریلویانو په معتمد کتاب(تشریحات نابغه)کې یې لیکلي دي چې علماء دیوبنددامکان کذب قائل ووچې دابعینه دکفرنسبت دی (معاذالله).

په اوله حصه (۴۶۵)صفحه کې ویلي دی چې (اومسئله دامکان الکذب چې دخدای تعالی نه ددرغوویل ممکن دي داچې هرچا چیرلې بدیې کړي

اوددیوبند په علماء کې پرې چاقول کړی دی بریلویان پرې اعتراضات لري داغلطی ده دهغوی او دهغې لپاره پرتوګ جوړول ښه کارنه دی دديوبند بعضې علماء دامکان الکذب په مسئله قائل وو).

همدارنګه يې دتشريحات نابغه په اوله حصه (۴۶۴) صفحه کې په اشرف علی تهانوی رحمه الله دبريلويانو اعتراضات منلي اوصحيح يې ورته ويلي دي همدارنګه يې دشاه اسماعيل شهيدرحمه الله توهين کړی او وهابی يې ورته ويلی دی.

حالانکه دا اعتراضات دبريلويانودي، اوهراعتراض ته علماء ديوبند بيابيا جوابونه کړي دي.

امام اهل السنة مولانا سرفرازخان صفدرصاحب رحمه الله ددې اعتراضاتو دجواباتولپاره مستقل کتاب ليکلی دی په نوم د(عبارات اکابر) داحقاق الحق په پنځم جلدکې هم تفصيلي جوابونه شته دي.

په (۵۷۷) صفحه کې يې داحمدرضاخان بريلوی تائيدکړی دی اوپه (۵۶۷) صفحه کې دجامعې حقانيې اوفتاوا حقانيی توهين کړی دی.

په علماء ديوبنداعتراضات اود احمدرضاخان بريلوی تائيد چې بريلويت نه دی نوڅه شی دی.

په پنجاب، سندهـ او هندکې چونکې بريلويت عام دی نوپه هغه علاقوکې سيفيان په ښکاره ځانونو ته بريلويان وايې او اقرارکوي چې په ټولو عقائدو، اعمالو اوفتاوجاتوکې داحمدرضاخان بريلوی سره موافق دي.

دلته به دالله جل جلاله په توفيق سره دسيفيانو دمشرپيرسيف الرحمان صاحب وغيره نورو مشرانو سيفيانو دکتابونوڅخه يوڅوعبارات رانقل کړو چې په

ښکاره يې ځانونو ته بريلويان ويلي دي اودبريلويانو سره يې په ټولو عقائدو ، اعمالو او فتاوجاتو کې دموافقت اظهارکړی دی.

(۱):په (انوار رضا) ج ۴ شماره نمبر (۳)کې دپيرسيف الرحمان صاحب خپله مرکه (انټرويو) ده، په ميډياکې دپيرسيف الرحمان دځوی تائيدي ويډيو ښه عامه موجود ده چې وايي (انوار رضا) دده دپلار پيرسيف الرحمان صاحب مرکه (انټرويو) ده.

همدارنګه په (انواررضا) دپيرسيف الرحمان صاحب دځامنو حميدجان سيفی ، احمد سعيد المعروف يارجان سيفی ،محمد سعيد حيدری السيفی وغيرو.. تصديقات درج دي.

ددې کتاب په مختلفوصفحوکې دبريلويت اقرار اود ديوبند دعلماوو تکفيرموجود دی (معاذالله).

مثلاً: په ص (۲۵) کې يې داحمدرضاخان بريلوی صاحب پّه باره کې ليکلي دي چې: (اعلی حضرت ولی کامل،عاشق رسول بی مثال عالم اور مجاہد تھے،وہ امام وقت ، ولایت کے اعلی مقام پر فائز تھے ،میں عقیدے ،مذہب ، قوم اور علاقہ ہر اعتبار سے ان کے موافق ہو) انتهی ،

اعلی حضرت احمدرضاخان کامل ولی په رسول الله صلی الله عليه وسلم عاشق، بې مثاله عالم او مجاهدؤ هغه دوخت امام اوکامل انسان وو ،دولايت په اعلی مقام فائزوو زه(پيرسيف الرحمان)په عقيده، مذهب ، قوم اوعلاقه په هراعتبارسره داحمدرضاخان صاحب سره موافق يم.

په (۴۰) صفحه کې يې ليکلي دي چې :(اعلی حضرت ولی کامل ، عاشق رسول ، بی مثال عالم او مجاہد تھے وہ امام وقت اور مرد کامل تھے وہ ولایت میں اعلی مقام پر فایز تھے آپ آپنے وقت کے عظیم فقیہ ، بی مثال محدث و مفسر جامع المعقول والمنقول تھے میں ان کی شخصیت سے انتہائی

متأثر ہو میں عقیدی، مذہب، قوم اور علاقہ ہر اعتبار سے ان سے موافق ہو اور ان سے کوئی اختلاف نہیں).

اعلی حضرت احمدرضاخان کامل ولی ،عاشق رسول، بی مثاله عالم او مجاهد وو هغه دوخت امام اوکامل انسان وو او دولایت په اعلی مقام کې وو هغه دخپل وخت لوی فقیه، بی مثاله محدث، مفسر جامع المعقول والمنقول وو.

زه (پیرسیف الرحمان)داحمدرضاخان بریلوی صاحب دشخصیت څخه انتهایی متأثره یم زه په عقیده ،مذهب، قوم اوعلاقه هر اعتبارسره دهغه سره موافق یم اودهغه سره هیڅ اختلاف نه لرم.

همدارنګه یې په (۴۹) صفحه کې لیکلي دي چې: (اور میں فقیراخندزادہ سیف الرحمان نے خطیب بے مثل مولانا علامہ مقصود احمد قادری صاحب خطیب مسجد داتا صاحب رحمہ اللہ اور دیگر علماء کرام کی موجودگی میں بار بار یہ بیان کیا کہ مجھے اعلی حضرت رحمۃ اللہ علیہ کے تمام فتاوی جات سے اتفاق ہے) انتهی.

مافقیرسیف الرحمان د داتاصاحب رحمة الله علیه دمسجد دخطیب مولانا مقصود احمد اودنورو علماوو په مخکې څو څوځله اقرارکړی دی چې زه داعلی حضرت احمدرضاخان بریلوی سره په ټولو فتاوی جاتوکې متفق یم، همدارنګه ددې کتاب په متعددو صفحوکې دبریلویت اقراردی لکه په (۷۵ ، ۷۷) وغیره صفحوکې.

همدارنګه یې د(انوار رضا) جلدنمبر(۴) شماره نمبر(۳) کې عنوان قائم کړی دی په نوم د(حضرت اخندزاده مبارک کې حیات مبارکه کی اخری تحریر).

پیرسیف الرحمان صاحب دخپل ژند په آخري خط کې داحمدرضاخان بریلوی صاحب دتفسیر کنز الایمان فی ترجمة القرآن طرف ته په داسې الفاظوترغیب ورکړی دی.

((کنزالایمان فی ترجمۃالقرآن اردو زبان مین اعلی حضرت امام احمد رضاخان فاضل بریلوی رحمہ اللہ کاوہ عظیم علمی وروحانی شاہکار ہی کہ جس کی اہمیت وافادیت کسی باشعور صاحب علم وذی شعور سی مخفی نہیں اور نہ ہی کوئی دیانت دار شخص اس کے عظیم علمی حیثیت کا انکار کرسکتاہی۔قرآن کریم کی ترجمہ کی لئی ضروری ہی کہ مترجم روح قران سی اشناہو اور اس اصول پراعلی حضرت امام احمد رضابریلوی رحمہ اللہ پوری اترتی ہین اسی لئی کنزالایمان فی ترجمۃالقرآن مین شان الوہیت کامکمل پاس رکہاگیاہی اور منصب نبوت ورسالت کی آداب کوبہی پیش نظر رکہ کر ترجمہ کیاگیااس میں شک نہین کہ یہ بہت عمدہ اور باادب ترجمہ ہی۔کنزالایمان کی زبان کوثروسلسبیل سی دہلی ہوئی اور عشق رسالت مآب صلی اللہ علیہ وسلم کی خوشبوؤں سی معطرومعنبر ہی امام احمد رضارحمہ اللہ کا قلم عرفان ذات کی روشنیاں بکہیرتاہی اور ظلمت وبدعقیدگی کوکافور کرتاچلاجاتاہی۔نقاہت وعلالت کی سبب میں زیادہ کچہ کہنی کی پوزیشن میں نہیں ہوں ورنہ دیگر مترجمین کی لغزشوں اور غلطیوں کی نشاند ہی کی ساتہ کنزالایمان کی افادیت پرسیر حاصل کتاب لکہ دیتا۔سہ ماہی ((انواررضا)) جوہرآباد کی طرف سی اشاعت خاص ((انوارکنزالایمان)) اہل حق کی لئی ارمغان علم وعرفان ہی میں اس کی اشاعت پرمسرور ہو نیز اس کی کامیابی، قبولیت اور مقبولیت کی لئے دعاگوہوں[(١)].

(٢):دپیرسیف الرحمان صاحب یوه رساله ده په نوم د (قیوم زمان مجدد دوران امام خراسان حضرت اخندزادہ فقیر سیف الرحمان مبارک رحمۃ اللہ علیہ المعروف پیرارچی وخراسانی کاپیغام علماء ومشائخ اہل السنۃ کے نام ناشر مکتبہ محمدیہ سیفیہ آستانہ عالیہ راوی ریان شریف۔لاہور برائي رابطہ پیرعابد حسین سیفی (٠٣٣٣٤٢٦٣٩٤٣).

(١):انوار رضا جلد نمبر(٤)شماره نمبر(٣) صفحه (٨).

ددې رسالې په (۳) صفحه کې يې لیکلي دي چې: (اور میں فقیر اخندزادہ سیف الرحمان نے خطیب بے مثل مولانا علامہ مقصود احمد قادری صاحب خطیب مسجد داتا صاحب رحمہ اللہ اور دیگر علماء کرام کی موجودگی میں بار بار یہ بیان کیا کہ مجھے اعلی حضرت رحمۃ اللہ علیہ کے تمام فتاوی جات سے اتفاق ہے)- انتهى.

مافقیرسیف الرحمان د داتاصاحب رحمة الله علیه دمسجد دخطیب مولانا مقصود احمد اودنورو علماوو په مخکې څو څوځله اقرارکړی دی چې زه داعلی حضرت احمدرضاخان بریلوی سره په ټولو فتاوی جاتو کې متفق یم.

همدارنګه یې ددې رسالې په (۷) صفحه کې یې لیکلي دي چې: (آپ امام ربانی حضرت مجدد الف ثانی اور امام احمد رضاخان بریلوی رحمۃ اللہ علیہ کے افکار و نظریات سے انتہائی متأثر تھے اور آپ آپنی زندگی میں فقیر کے سامنے حسام الحرمین اور اعلی حضرت کے دیگر فتاوی جات کے تائید وحمایت کی) انتهی.

پیرسیف الرحمان صاحب دامام ربانی مجدد الف ثانی رحمه الله اوداحمد رضاخان بریلوی رحمه الله دافکارو اونظریاتو څخه انتهایی متأثره وو اوپیرسیف الرحمان په خپل ژوندکې دفقیر(صاجزاده حاجی محمد فضل کریم رضوی ایم این ای) په مخکې دحسام الحرمین اوداعلی حضرت دنورو فتاوه جاتو تائیداوحمایت وکړو.

همدارنګه یې ددې رسالې په (۱۱)صفحه کې دمفتی غلام فرید هزاروی سعیدی رضوی سیفی وینا لیکلې ده، چې مفتی غلام فرید سیفی ویلي دي چې :(حضرت اخندزادہ صاحب سرکار تمام عقائد میں اہل السنۃ بریلوی سے پوری پوری مطابقت رکھتے ہیں، عرس کرواتے ہیں میلاد مناتے ہیں استانے پر عرس کے موقع پر سلام مع القیام بھی پڑھا جاتاہے ) انتهی.

پیرسیف الرحمان صاحب په ټولو عقایدو کې د اهل السنة بریلوی سره پوره پوره مطابق وو (دبریلویانو په شان یې) عرس کولو، میلاد یې لمانځلو او په خپله استانه کې یې په عرس کې د سلام سره قیام هم کولو.

(۳): مولوی احمدعلی شاه سیفی کراچی چې دسیف الرحمان صاحب په لویو خلیفه ګانو کې دی لیکلي دی چې نن صبا په اختلافی مسائلو کې زمونږه داهل السنة سیفیانو لپاره دامام اهل السنة اعلی حضرت احمد رضاخان بریلوی قول، قول فیصل او حجت دی[۱].

همدارنګه یې دبریلویانو دمناظراعظم مولوی نظام الدین ملتانی په حواله لیکلي دي چې مولوی نظام الدین داشاری کولو څخه منعه کړې ده حال داچې هغه لوی مناظروو[۲].

مولوی نظام الدین هغه ګستاخ بریلوی دی چې په خپل کتاب انوار شریعت کې یې ځای په ځای ددیوبند اکابرو ته کنځل کړي دي اود شاه اسماعیل شهید رحمه الله حجة الاسلام مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله، مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله، مولانا خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله او دمولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله تکفیریې کړی دی.

دداسې تکفیری بریلوی د کتاب څخه استدلال عین بریلویت دی.

(۴): دپیرسیف الرحمان صاحب خلیفه صوفی نثارالحق یو کتاب لیکلی دی په نوم د(اکرام مسلم)ددې کتاب په آخری صفحه کې یې یوعنوان لیکلی دی (دسالکینو لپاره ضروری کتابونه) او بیایې د کټربریلویانو دکتابونو نومونه لیکلي

(۱): مجموعه رسائل ج (۲) صـ ۲۹۱ ناشرجامعه امام ربانی کراچی.

(۲): مجموعه رسائل حصه دوم صـ (۳٥٤).

دي لکه (تفسيرضياء القرآن،علامه پيرکرم شاه الازهري رحمه الله، ترجمه وتفسير اعلى حضرت احمد رضاخان رحمه الله، احکام القرآن مولانان نعيم الدين مراد ابادی رحمه الله ،سنی بهشتی زيور مفتی خليل الرحمان برکاتی مولاناعالم فخری).

نوسيفيانوته يې خپل مشر ددومره لويو لويو بريلويانو دکتابونو دمطالعه کولو ترغيب ورکول بريلويت نه دی څه شی دی؟

(۵): دپيرسيف الرحمان صاحب ممتاز خليفه علامه سيدعمردراز سيفی مشهدی په خپله رساله مجلة العلم ؛خواجه سيف الرحمان؛ (۲) صفحه کې ليکلي دي چې (به يادگار امام اهل السنة ، مجدد دين وملت ، پروانه شمع رسالت عظيم البرکت عظيم المرتبة حضرت علامه مولانا الشاه احمدرضاخان فاضل بريلو قدس سره) نتهی.

دبريلويانو دبنياد گزار لپاره دومره القاب يوائې بريلويان استعمالوي.

(۶): دپيرسيف الرحمان خليفه مطلق صوفی نثارالحق (خياط)يوکتاب ليکلی دی په نوم د(اکرام الحق)ددې رسالې په (۲۸۴)صفحه کې يې داحمدرضاخان بريلوی دپلار نقی علی خان په باره کې داسې ليکلي دي چې (اعلى حضرت عظيم البرکت اعلم العلماء الربانين افضل العلماء الحقانين حامی السنن معجزة من معجزاة المرسلين ذی التصنيفات الرايقة والتحقيقات الفايقه والتدقيقات الشايقه تاج المحققين،سراج المدققين، اکمل الفقهاء المحدثين حضرت سيدنا الواجد، مجدالماجد،اطيب الاطايب مولانا محمد نقی علی خان محمدی ،سنی، قادری برکاتی بريلوی اکرام الحق صـ(۲۸۴) ناشر تبليغ صوفيا دعوت الی الخير کراچي.

دامولوی نقی علی داحمدرضاخان بريلوی پلاروو اودحجة الاسلام حضرت مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله دكتاب (تحذيرالناس) په باره كې همده فتنه راپورته كړې وه.

(۷):دسيفيانو پيرطريقت شيخ العلماء مياه محمد سيفی حنفی ماتريدی په خپل يوبيان كې ويلي دي چې زمونږپيراوپيشوا حضرت مجدد العصرمحبوب سبحان سيدنا ومرشدنا اخندزاده سيف الرحمان پيرارچی خراسانی مبارک مدظله مونږته داحمدرضاخان په تعليماتوپه سختي سره دعمل كولو هدايت كولو اوراته ئې ويل چې داحمدرضاخان دفكرعام كولو لپاره بايد مكمل كوشش وشي[۱].

## دبريلويانو په تائيدكې پيرسيف الرحمان دعلماء ديوبند اكابرينو دتكفيرقائل دی

(۸):په (انواررضا صفحه ۵۰)كې يې دپيرسيف الرحمان صاحب په مركه (انټرويو)كې رانقل كړي دی چې: (اس کے باوجود جب میرے سامنے حفظ الایمان کی وہ عبارت جس میں رسول اکرم صلی اللہ علیہ وسلم کی علم کو پاگلون کے علم سے تشبیہ دی گئ تہی تو میں نے اس کے مصنف، قایل، مصدق و مصحح کو کافر قرار دیا اواسی طرح دیگر گستاخانہ عبارات کے قایل، مصدق، و مصحح کو کافر قرار دیا اور میرا آج بہی ہمیں فتوی ہے اور الحمد للہ میں کتاب (حسام الحرمین) کی بہی مکمل تائید کرتا ہوں) انتهی.

دمولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله پورې بريلويانو افتراء كړې وه چې مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله دنبی عليه السلام دعلم تشبيه (معاذالله) دليونيانودعلم سره وركړې ده.

(۱): (اهم مقاله صـــ (۱۸) استانه عاليه سفيه لاهور).

دبریلویانو ددې افتراء لپاره مونږ په احقاق الحق پنځم جلد کې جواب رانقل کړی دی، مولانا سرفرازخان صفدر رحمه الله په عبارات اکابرکې هم تفصیلی جواب لیکلی دی.

نوپیرسیف الرحمان دبریلویانو دغه اعتراض ته په اشاری سره وایې چې زه دحفظ الایمان مصنف (مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله) ته کافر وایم معاذالله.

بلکې (ټولو دیوبندیانو ته چې) ددې کتاب قائلین ، مصدقین یامصححین دي کافران وایم او اوس مې هم همدا فتوی ده همدارنګه دحسام الحرمین هم پوره تائیدکوم.

حسام الحرمین هغه کتاب دی چې دټولو اکابرو ددیوبند تکفیرېې په کې کړی دی.

دحسام الحرمین تائید ددیوبند د اکابرو تکفیردی نوپیرسیف الرحمان ددیوبند داکابرو دتکفیر قائل ؤ.

(۹): د(فقیر سیف الرحمان مبارک کا پیغام علماء ومشائخ اهل السنة کی نام) په (۴) صفحه کې یې هم دحفظ الایمان مصنف مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله ته کافرویلی دی همدارنګه ددې کتاب قایلینو، مصدقینو اومصححینو یعنې ټولو دیوبندیانو ته یې (معاذالله) کافران ویلي دي.

همدارنګه یې ددې کتاب په همدې (۴) صفحه کې دحسام الحرمین دکتاب تائید کړی دی.

دهمدې رسالې په (۶) صفحه کې یې هم ددیوبندیانو په تکفیر کې دحسام الحرمین تائیدکړی دی.

(۱۰): دپیرسیف الرحمان خلیفه احمدعلی شاه سیفی کراچۍ والا هم په حسام السیفیه کې دټولواکابرینوددیوبندتکفیرکړی دی ،او ویلي دي چې څوک ددوی په کفرکې شک کوي هغه هم کافردی.

(۱۱):دسیفیانوبقیة السلف محمد عابد حسین سیفی په خپل کتاب (مجدد عصر حاضر شهنشاه خراسان) په (۹۳) صفحه کې دپیرسیف الرحمان صاحب په خپل لاس لیکلی خط نشرکړی دی .

په هغې کې یې تبلیغی حضراتو ته صراحتاً جبریه اوکافران ویلي دي وګوره (شهنشاه خراسان صـ ۹۳ شعبه نشر واشاعت دارالعلوم جامعه جیلانیه ، نادرآباد ، بیدیان روڈ ، لاهور کینټ).

(۱۲): پیرسیف الرحمان دولایت اود بزرګی دعوه کړې ده هدایة السالکین صـ (۳۲۱).

اوپه (۸۵) صفحه کې یې لیکلي دي چې دولی څخه منکر کافردی.

(۱۳): پیرسیف الرحمان تبلیغی حضراتو ته جبریه ویلي دي: (کچھ عرصہ نوشہرہ جامع مسجد دل ارام میں خطابت کے فرایض ادا کے-وہاں فرقہ جبریہ کے تبلیغی جماعت کے اکثریت تھی انوار رضا ص- (۷۴).

اوپه همدې انواررضا صـ (۴۴) کې یې لیکلي دي چې :(عقیدہ جبریہ رکھنے والا کسی طور پر بھی مسلمان نہیں).

یعنې دجبریه عقیدی والاهېڅ مسلمان نه دی.

په هدایة السالکین (۹۵) صفحه کې یې لیکلي دي چې: ( حالانکہ جبریہ وغیرہ فرق ضالہ مبتدعین اعتقادی ہیں اور ضروریات دین سے منکر اور کافر ہیں ).

یعنې جبریه ددین دضروریاتو څخه منکر او کافردي.

نو تبليغی حضراتو ته يې (معاذالله) کافرو ويلې.

په هداية السالکين (۹۴) صفحه کې يې ليکلي دي چې: (اور انکار ضروریات کی وجہ سے کافر ہو جائے تو اس کی کفر میں شک کرنے والا یا اِسے مؤمن ٹھہرانے والا بھی کافر ہوتا ہے).

يعنې تبليغی حضرات جبريه دي او جبريه قطعی کافران دي او څوک چې داسې کافرته کافرنه وايې مسلمان يې ګڼي او يايې په کفرکې شک کوي نو هغه هم کافردی.

نو تبليغی حضراتو ته خويې (معاذالله) کافران ويلي دي لکن څوک چې تبليغی حضرات کافران نه ګڼي يايې په کفرکې شک کوي هغوئ ته يې هم کافران ويلي دي.

حالانکې تبليغی جماعت د ديوبند شاخ دی جبريه نه دي.

تبليغی حضرات د نورو اهل السنة والجماعة په شان فرمايې: چې هر شی د الله تعالی په اراداه کيږي، او خالق الله تعالی دی کاسب بنده دی.

پيرسيف الرحمان دحرمينو دامامانو
په اقتداء کې لمونځ نه کولو

(۱۴): پيرسيف الرحمان به دحرمينو دامامانو په اقتداء کې لمونځ نه کولو په (انوار رضا صفحه ۸۵) کې د پيرسيف الرحمن دعُوی احمد سعيد وينا ده چې: (چونکی وہ خود جید عالم دین ہیں اس لیے حرمین شریفین میں نجدی امام کے اقتداء میں نماز نہیں پڑھتے) انتهی.

يعنې چونکې سيف الرحمان خپله ښه عالم دين وو لهذا په حرمينو شريفينو کې به يې دنجدی امام په اقتداء کې لمونځ نه کولو.

(۱۴): پيرسيف الرحمان دبريلويانو په شان

نبی علیه السلام حاضراوناظرگڼلو

دپیرسیف الرحمان خلیفه دسیفیانو استاذالعلماء مولاناغلام فریدهزاروی سیفی رضوی یوه رساله لیکلې ده په نوم د(معروضات الحاذق فی خدمۃ مولانا صادق).

دهغې په (۱۲) صفحه کې یې لیکلي دي چې:(بلکہ میں مسمّٰی غلام فرید سیفی ہزاروی نے ایک موقع پر سرکار مبارک سے دوران گفتگو پوچھا کہ کیا حضور صلی اللہ علیہ وسلم حاضر وناظر ہیں؟ کیایہ عقیدہ صحیح ہے؟ توآپ نے تصدیق فرماتی تھی کہ ہاں بالکل حضور صلی اللہ علیہ وسلم حاضر وناظر ہے)

یعنې مایوه ورځ دپیرسیف الرحمان نه پوښتنه وکړه چې آیانبی علیه السلام حاضروناظردی؟ هغه راته وویل چې هونبی علیه السلام حاضر وناظردی.

(۲):دسیفیانو مصنف اعظم مولانا غلام ریس صاحب محمدی سیفی یو مستقل کتاب لیکلی دی په نوم د(حاضر وناظر محبوب)یعنې (ہمارانبی حاضر وناظر ہی)[۱].

فانقیل:چې پیرسیف الرحمان په هدایة السالکین (۸۴) صفحه کې لیکلي دي:چې زه نه دبریل اوسیدونکی یم نه دبریل مرید یم نه دبریل شاگرد یم اونه دبریل مقلد یم انتهی.

نوپه څلور حیثیاتوېې دځان څخه بریلویت نفی کړی دی.

قلنا:متعارف بریلویان په دغه مذکورو څلورو حیثیاتو بریلویان نه دي؛بلکې بریلویان هغو ته وایې چې عقیده اوعمل یې دبریلویانو وي اوپیرسیف الرحمان ددې څخه نفی نه ده کړې، پیرسیف الرحمان اونورسیفیان ددیوبند داکابرینو دتکفیرقائل دي، همدارنگه داحمدرضاخان تائیدیې هم کړی دی، همدارنگه

(۱): مطبوع مکتبه محمدیه سیفیه راوی ریان حسین ٹاون جی ٹی روڈ لاهور.

عقائديې دبريلويانودي، همدارنګه اعمال يې دبريلويانودي، نوپه دغو ثلوروارو حيثياتو سيفيان بريلويان دي.

(۲): دپيرسيف الرحمان داخبره مخکينۍ ده چې کله په خيبر پښتونخواکې اوسېدلو دلته چونکې دبريلويت څخه نفرت عام دی نوددې لپاره چې بزنس يې خراب نه شي نودلته يې داويلي دي لکن چې کله لاهورته لاړو نوبيا يې په ښکاره دبريلويت اقرارکړی دی لکه مخکې چې متعددې حوالې ذکرشوې.

(۱۵)چلينج

(۳):سيفيانوته چلنج وركوم چې ستاسو مشر پيرسيف الرحمان داحمد رضاخان بريلوی ثومره صفتونه کړي دي لکه مخکې چې ذکرشو تاسو دپيرسيف الرحمان دخولې څخه دديوبند داکابرو مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله ، شيخ الهند رحمه الله ، مولانا رشيداحمد ګنګوهی رحمه الله ، مولانا خليل احمد سهارنپوری رحمه الله ، مولاناذکريا رحمه الله اودمولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله وغيره... اکابرو صراحتاً يوصفت ثابت کړئ.

اوله دعوه:زما په زرګونه مريدان او خليفه ګان اولياء دي[1].

زما تقريباً اته زره خليفه ګان دي او ټول کامل او مکمل اولياء دي،او ددوی د ولايت څخه انکار کفر دی[2].

(۱):تبصره: ستا د مريدانو او خليفهګانو ولايت او بزرګي د کوم آيت،کوم حديث، کومې اجماع او کوم قطعی دليل څخه ثابت دي؟ چی انکار يې کفر شي د ولايت شخصيه غير منصوصه څخه انکار ته چا کفر ويلی دی ؟

دوهم:د پاکستان او افغانستان ټول مستند مدارس او مستند مفتيان سيفيان نه اهل سنت والجماعت ګڼي،او نه يی صحيح صوفيان ګڼي نو ايا د ټول "معاذ الله" کافران دي.

دوهمه دعوه:پير سيف الرحمن د اخص الخواص اولياءوو څخه دی[3].

په زرګونو نيک خوبونه او حق کشفونه او رحمانی الهامات داسی موجود دی چی ددی فقير په مجدديت او حقانيت باندی شاهد دي[4].

(۲):تبصره:الله تعالی فرمايلي دي چې:(فلا تزکوا انفسکم هوا علم بمن اتقی).

دپير صاحب دا دعوی تعلی تکبر او نفسانيت دي.

دوهم: حضرت مجدد الف ثانی فرمايلي دي چی:(الهام و کشف بر غير حجت نيست)[1].

---

(۱):هدايت السالکين ص(۲۵۹).

(۲):هداية السالکين ص( ۲٦۰).

(۳):هدايه السالکين ص (۱۷٦).

(٤):هداية السالکين ص (۲۹۹).

نو د سیفیانو خوبونه او کشفونه څرنګه حجت شو ؟

دریېم:د مجدد لپاره دعوی نه ده ضروري کنه هر سړی به ځان ته مجدد وايې.

دریمه دعوه:په پیری او بزرګۍ کې یې د مقابلې چلنج کړی دی.

(*عندالارتہان تعرف السوابق کی مضمون پر میدان مے معلوم ہو سکتا ہے* )[۲].

تبصره:د معجزاتو صدور د انبیاوو څخه د معارضې، تحدی او چیلنج په طریقه وي او د کراماتو صدور د اولیاوو څخه بغیر د معارضې، تحدی او چیلنج څخه وي په خوارقو کې منکر ینو ته چیلنج د نبوت خاصه ده، نو دپیر صاحب په ولایت کې چیلنج په باطن کې د نبوت دعوه ده.

خلورمه دعوه

(۱):زما خلیفه حضرت روحانی صیب په یوه ساه د قران ختم او لس زره ځله لااله الا الله لوستلی شی[۳].

(۲): د سیف الرحمان مریدان او خلیفه ګان د سیف الرحمان دعلومو او کمالاتو واضحه نمونه ده[۱].

---

(۱):مکتوباتشریف ص (۸۹).

(۲):هدایة السالکین ص (۱۵۲).

(۳):ص (۱۷۸).

(۱):ص (۱۷۸).

(۳):زه ځکه مجدد یم چې زما ټول مریدان عمامه په سروي او د ډوډی په اول او اخر کی مالګه څټيي[۲].

(۴): د **(ان اولياءه الا المتقون)** صحيح مصداق سيفيان دي[۳].

(ا):تبصره:یو طرف ته يې تکبر او تعلی ته ګوره چې زما د مریدانو دغه حال دی نو خپله د سیف الرحمن به څه حال وي ؟

دوهم:عمامې په سر کولو ته يې د مجددیت علامه ویلې ده نو د افغانستان د قندهار، هلمند ،زابل، رزګان، غزنی وغیره ولایتونو مسلمانان یا ټول مجددین شو ،ځکه هلته اوس هم غټ او واړه ټول عمامه تړي؟

همدارنګه دپنجاب بیړیري (بی ریشن) خلک هم عمامه تړي نو ايا دا هم ټول مجددین شو.

دریم: او دډوډی څخه مخکې او وروسته دثواب په نیت دمالګې څټل بدعت دی، او پدې باره کې حدیث موضوعی دی یو دمالګې والا د ځان څخه جوړ کړی دی.

**(وفی اللالی یاعلی علیك بالملح فانه شفاء من سبعین داءٍ لا یصح فیه عبدالله بن احمد بن عمرو وهو وابوه یرویان عن اهل البیت نسخةً کلها باطلة وفیه العلاء یضع اللالی المصنوعة فی الاخبار الموضوعة)**[۱].

---

(۲):ص(۳۰۰).

(۳):ص ۱۷۸.

(۱): الموضوعة. ص ۱۴۱ وتذکره الموضوعات ص ۳۰۳.

څلورم:چې د(ان اولياءه الا المتقون)صحيح مصداق سيفيان شو، ددېڅخه خود الازمه شوه چې غير سيفي ددېاى يت مصداق نه دى، نور ټول صوفيه كرام قادريان، چشتيان،سهروردیان وغيره..يې ددى ايت د مصداق څخه خارج كړل.

پنځمه دعوه:خولۍ په سر كول يا لوڅ سر ګرزيدل كفر دى.

په (۱۴۴) صفحه كېيې ليكلي دې چې:عمامه سنت دائمه "مستمره" لازمه او متواتره قطعيه دى.په۱۴٦صفحه كې يې ليكلي دي چې صرف خولۍ په سر كول يا لوڅ سر ګرځېدل د كافرانو شعار دى.

په **۱۴۵** صفحه كېيې ليكلي دي چې: د كفارو شعار خپلول حرام بلكې په كفر كې دداخېلېدلو سره مترادف دى.

(ا): تبصره:ددنيا اكثر و مسلمانانو ته يې كافران ويلي دي.

دوهم :كوم سيفيان چې صرف د پير صاحب د ملاقات لپاره عمامه په سر كوي او په عامو حالاتو كې خولۍ په سر كوي يا لوڅ سر ګرځي هغوى ته يې هم كافران ويلي دي.

دريم: نبى عليه السلام فرمايلي دي چې(**بيننا وبينهم الصلوة فمن تركها فقد كفر**).ترې سيفيان وائى چې **بيننا وبينهم العمامة فمن تركها فقد كفر**.

څلورم: فقهاوو عمامې ته سنت زائده ويلي دي.

شپږمه دعوه:په ټوله دنيا كې دشريعت او د سنت صحيح تابعدار ان فقط سيفيان دي[1].

(۱): ص (۱۷۸).

(۲):ص (۳۰۱).

د احیاء سنت او اماتت بدعت یو اځنی نظاره په خانقاء سیفیه کې ده(۲).

(ا)تبصره:د حصر صیغه ئې ذکر کړې ده،نو د مفهوم مخالف په طریقه نه بلکې صراحتاً یې نورو ټولومسلمانانو، ټولو صوفیه کرامو او ټولو مشائخو ته بدعتیان وویل.

دوهم:تاسو تجربه وکړی په سیفیانو کې به اتباع دسنت نه بلکې صرف بد اخلاقي بدزبانی، تکبر، رعونت،نفرت، شحونت، کنزلی،بزنس،او رقص وګوری.

اوومه دعوه (ا):پیر سیف الرحمن د غوث پاک رحمه الله څخه شپږ درجې اوچت دی، غوث پاک مجدد وو، او پیر سیف الرحمن مجدد افخم دی،او د پیر سیف الرحمن مقام د پیران پیر صاحب څخه اوچت دی(۳).

تبصره: دلته یې د پیران پیر رحمه الله ډیره بې ادبي کړې ده.

پیر سیف الرحمان یې په کورسۍ کینولی دی او پیران پیر صاحب ئې د مسجد په کونج کې ودرولی دی.

(۲):پیر سیف الرحمان ته یې لمر او غوث پاک رحمه الله ته یې سپوږمۍ ویلې ده.

(۳):د غوث پاک رحمه الله څخه یی سپوږمۍ جوړه کړې ده او په پیر سیف الرحمن کیپې جذب کړې ده.

---

(۳):ص (۳۲٤تا۳۲۵).

(۴):د غوث پاک رحمه الله څخه ئې سپوږمۍ جوړه کړې ده، او په ځمکه يې ايښې ده او د پير سيف الرحمن څخه ئې لمر جوړ کړی دی او اسمان ته يې خيژولی دی.

(۵):غوث پاک ته يې صرف مجدد ويلی دی او پير سيف الرحمن ته يې مجدد افخم يعنی د لويې مرتبې مجدد ويلی دی.

(۶):غوث پاک يې صرف د عبديت په مقام فايز کړی دی،او پير سيف الرحمن يې ور څخه شپږ مقامه اوچت کړی دی په اخر کيبې تصريح کړی ده چې د پير صاحب مقام د غوث پاک د مقام څخه اوچت دی.

(۷): د عبديت څخه اوچت مقام د اولياءو نشته حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله فرمايلی دی چې (در درجات ولايت فوق عبد يت مقامی نيست[(۱)].

(۸):دعبديت څخه د اوچتو مقاماتو نومونه کوم کوم دی ؟

اتمه دعوه:پيرسيف الرحمان په دنيا کې ولي دی او په آخرت کې به نبي شي[(۲)].

پيرسيف الرحمان دادخپل خوب تعبير گرځولی دی.

(يه خوب واضح طورپر فقير كے خواب كيے تعبير ہے )

نهمه دعوه:دپيرمحمدچشتی داعتراضاتوتصديق کونکی کافردی[(۳)].

---

(۱):مکتوب نمبر (۳۰ ج ۱)،مکتوب نمبر (۲۸۵).

(۲):هداية السالكين صـــ (۳۲۷).

(۳):صـــ( ۲٤۷).

لسمه دعوه:په پیرسیف الرحمان دروغ تړونکی کافردی اودسیفیانوپه وجد اعتراض کونکی کافردی [١].

تبصره: په یومشخص پیرباندې اعتراض کونکی ته کوم مفتی اوپه کومه فتاوی کې کافرویلي دي؟

په یومشخص پیرباندې اعتراض کونکي ته کومې فتاوی کافرویلی دی.

وروسته به په لسهاوو عبارات دحنفي فقهې ذکرکړوچې رقص الصوفیه ته یې حرام ویلی دی.

یوولسمه دعوه:پیرسیف الرحمان راروانوخوبونوته په خپله بزرګۍ ظاهري حجج ویلي دي [٢].

لهذا دخوب واقعات یې داسې ګڼلي دي لکه دویښې.

لهذاپه خوب کې امام الانبیاء والی یې داسې دی لکه دویښې.

پیرسیف الرحمان دنبی علیه السلام په موجوده ګۍ کې ټولوانبیاوو او اولیاوو ته امامتي ورکړه [٣].

ابوبکرصدیق رضی الله عنه اوعبدالرحمان بن عوف رضی الله عنه یوځلې دعذرپه صورت کې اوپه اول کې دنبی علیه السلام په عدم موجوده ګۍ کې امامتي ته مخکې شویوو.لکن پیرسیف الرحمان بې عذره اودرسول الله صلی الله علیه وسلم په موجوده ګۍ کې امامتي ته مخکې شوی دی.

---

(١): صـ (٢٤٧).

(٢):صـ (٣٢٩).

(٣):صـ (٣٢٩).

دولسمه دعوه:پيرسيف الرحمان درحمان په جزء کې دالله جل جلاله سره شريک دی[۱].

ديارلسمه دعوه:پيرسيف الرحمان دبدرپه جنګ کې دنبی عليه السلام دتورې روح ؤ[۲].

نبی عليه السلام پيرسيف الرحمان ته سوال وکړو چې زما أمت ګناهګاردی ته کوشش وکړه[۳].

د پير سيف الرحمان په خلاف د مستندو مدارسو
او مفتيانو حضراتو فتوی

(۱):د پير سيف الرحمن تصنيفاتو ده لره په عوض د مصلح کېدلو مفسد جوړکړي دي او دده اسلام يې مشکوک کړی دی په ټول اهل اسلام فرض ده چې دده بيعت واپس کړي، او دده مقابله وکړي، او حکومت دې ئی ګرفتارکړي.

بيـــان مفتي محمد فريد صاحب اکوړه خټک.

(۲):دې ګمراه پير سيف الرحمن تبليغی جماعت ته کافر ويلي دي او مسلمان ته بلا دليله کافر ويل پخپله ويونکی په ځوواره کافر دی او داسلام خارج دی.

بيـــان ډاکټر فدا حسين مبلغ اسلام بالاماړی پشاور.

(۳):پيرسيف الرحمن ته دتوبې دعوت ورکړلشي او که توبه نه کوي نو دده لپاره هغه سزاده کومه چې دزنديق ده.

بيـــان دعبدالمالک شيخ الحديث منصوره لاهور.

(۱):صــ (۳۲۸).

(۲):صــ (۳۲۸).

(۳):صــ (۳۳۲).

(۴):پیر سیف الرحمن لو یو عالمانو د اسلام مشاهیر علماء کرام او پاکو مسلمانانو ته کافران ویلي دي د حدیث مطابق دی پخپله کافر او د اسلام څخه خارج شوی دی.

بیان د مفتی غلام صدیق یکه توت پښاور.

(۵):فرقه سیفیه یو ګمراه او د حق د ښمنه طائفه ده ،په هر مسلمان فرض ده چې ځان ترېنه وساتي او مقابله یې وکړي.

بیـــان د مفتی سراج الدین صوابی.

(۶): پیر سیف الرحمن او دده مریدان ضال او مضل (ګمراه او ګمراه کونکي) دي اسلام څخه وتلي دي دا دامت لپاره یوه لویه فتنه ده.

بیان د محمد ایوب جان بنوری دارلعلوم سرحد پشاور.

(۷):مندرجه بالامفتیانو او علماؤ کرامو د فتوا تائید کوم او دپیر سیف الرحمن عقائد او اعمال د شریعت اسلام څخه خلاف دي او دی دمسلمانانو دپاره دګمراهۍ سبب ګڼم.

بیان د شیخ الحدیث مولانا حسن جان رحمه الله

(۸):پیر سیف الرحمن د اسلام څخه خارج دی او دده قتلول واجب دي، حکومت دې دی قتل کړي یا دې د پاکستان څخه وباسي.

بیان د مفتی محمد دینګل بهار.

(۹):پیر سیف الرحمن یقینا او بلا شبهة ددین اسلام خائن او دښمن دی د هدایت په نامه عوام ګمراه کوي باید چې د وطن نه خارج کړلشي.

بیـــان د مولانا عبد الرحیم جیتې روډ پښاور.

(۱۰):داسي شخص هېڅکله د الله ولی نه شي کېداب بلکې گمراه او سخت مجرم دی دده څخه ځان ليری ساتل پکار دي.

بيـــان دمفتی عصمت الله کراچی.

(۱۱):ددين بزرگان او دامة علماء داسلام څخه خارج مقررول پخپله د اسلام څخه خارج دي.

بيان دپير سباق حافظ بشير احمد حفظه الله

(۱۲):پيــر سيــف الرحمن مکتوبات او تأليفات د خرافاتويوه مجموعه ده، او دی داسلام څخه بالکل خارج دی.

بيان دصبيح الدين صاحب حق صاحب چارسده.

(۱۳):بلاشبه پيرسيف الرحمان دجال دی او مسلمانان گمراه کوي دقاديانيانو څخه زيات مفسد دی بايد چې بندي خانه کې واچول شي يابه دار وځړولشي.

بيان دمولوی نعمت الله شيخ الحديث کوهاټ:

(۱۴):دفرقه سيفيه عقايده او نظريات فرقه اغانی خانی سره مطابق دي چه ضال او مضل او کافر دی.

بيـــان دمفتی محمد اقبال مدرسه نصر العلوم گوجرانواله

(۱۵):دا پيــر سيــف الرحمن پير نه دی بلکې په حقيقت کې دجال او مرتد شوی دی بايد چې دعلاقي څخه وايستلشي.

بيـــان دمفتی محمد سردار

(۱۶):دپيــر سيــف الرحمن حرکات د شريعت او مذهب څخه بالکل خلاف دي دده سره هل پکار دي.

بيـــان دقاضی الله تمير گړه سوات

(۱۷): مونږ د سرحد علماء فتوا تائید کوو دغه پیـــر سیـــف الرحمن گمراه او گمراه کونکی دی باید د ملک څخه وایستلشي.

بیـــان د مفتی مشتاق احمد بنوریټاون کراچی.

(۱۸): دا په دجالي او فریب او مخصوص جادو په ذریعه مسلمانان گمراه کوي.

بیان د مفتی عبد الله

(۱۹): د پیـــر سیـــف الرحمن په باره کې د مفتی فرید احمد صاحب رایه دلمر په شان روښانه ده ددې گمراه څخه اجتناب واجب دی.

بیان د مفتی مزمل شاه مردان.

(۲۰): ددې جعلي پیـــر سیـــف الرحمن په کفریاتو سکوت کول بې دیني او د الله ج او رسول ﷺ څخه دبغاوت ښکاره دلیل دی.

بیـــان د شیخ الحدیث محمد حسن دارلعلوم اتمانزیی چارسده.

(۲۱): دپیـــر سیـــف الرحمن مکتوبات په عوض داصلاح په مسلمانانو کې د فساد خورولو ذریعه ده بلاشبه داسلام څخه خارج او کافر دی دملک څخه وایستلی شي.

بیـــان د مفتی محمد احمد شیـــر گړه.

(۲۲): دپیـــر سیـــف الرحمن عقائده گمراه کوونکي دی په عوض دمصلح مسفد جوړشوی دی او داسلام د دائرې څخه وتلی دی.

بیـــان د مولانا بجلیگهر صاحب رح.

(۲۳): ددغه گمراه پیر په بارکې د علماوو کرامو فتوا تائید کوم او فتوی حق گڼم.

بیـــان د مفتی محمد نعیم خطیب کوهاټ.

(۲۴):مسلمانانو ته کافر ويل پخپله کافر دی، او ددغه پير منونکي او ددې عقيدې ته صحيح ويلو والاهم کافر دی.
بيـــان دمحمد خبان پراچه ټاون کراچي.
(۲۵):ددغو کفري عقائدو پيـــر سيـــف الرحمن اسلام مشکوک دی باید حکومت يې ګرفتار کړي او د ملک څخه يې وباسي.
بيـــان ددين اظهر حقانی زرګری کوهاټ.
(۲۶):موږ دبلوچستان ټول علماء دسرحد دعلماء دفتوا تائيد او تصديق کوو چه پيـــر سيـــف الرحمن کافر او زنديق دی خپل معتقدين دې ورڅخه دبيزاري اظهار وکړي ورنه هغه کافر دی، جواب ورکوونکی پخپله فتوا کی صادق دي دحق پيروی باید وکړهشي.
بيـــان دمولانا عبدالمجيد مدرس مدرسه عربيه خيرالمدارس کويټه
(۲۷):جعلی پيـــر سيـــف الرحمن پخپله او دده مريدان ټوله ګمراهان دي، او نور خلک هم ګمراهان کويټول مسلمانان دېځانونه ددې فتنې څخه وساتي خصوصاً ديني طالبان دې دده څخه اجتناب وکړي دوی دطالبانو داسلامی تحريک پټ دښمنان دي.
بيـــان دقاری مهرالله مفتی سيـــف الرحمن ديوبندی مدرسه تجويد القران.
(۲۸):داجعلي پيـــر سيـــف الرحمن رسائل زما او زماد اعتمادو رفقاوو په نظر دلغوياتو، هزلياتو او کفرياتو علاوه نورهيڅ نه دي نو په دې سبب بايدټول مسلمانان دده دکتابو او عقائدو څخه ځان وساتي.
بيـــان دمفتی جامعه بحرالعلوم کويټه العبد عبدالستار ګلستانی.

(۲۹):پیرسیف الرحمان عام مسلمانانو او دیني جماعتوته کافر ویلي پخپله کافردی، کومو علماوو چې دده په باره کې فتوی ورکړیده زه د هغو تائید او تصدیق کوم.

بیـــانونه دمولانا عبدالستار شاه،مولانا سید محمد طاهر،مفتیگل حسن صاحب

(۳۰):دغه جعلی پیـــر سیـــف الرحمن پیر نه دی بلکه ضال او مضل دی د اسلامي حکومت فریضه ده چې داسې گمراهان بر سر عام په دار وځړول سی.

بیـان د حافظ خیر محمد مدرسه خیر المدارس.

(۳۱):پیـــر سیـــف الرحمن دخپلو موجوده عقائدو په وجه گمراه دی، د زندیق شرعي سزا دې ورکړلشي داسې دقادیانیانو په طریقه سره ددجال تشهیر کوي.

بیـــاندمولانا انوارالحق خطیب مرکزی جامع مسجد کوېټه

(۳۲):دا جعلی پیر ضال ومضل دی دده څخهځان ژغورل او دده گمراهي مسلمانانوته باید ثرگندهشي دادعلماء حق فریضه ده.

بیـــان داحقر مولانا عبدالباقی مدرسه مفتاح العلوم.

(۳۳):دا جعلي پیر گمراه دی ټوله مسلمانان دده فتنې څخه ځان وساتئ.

بیـــان دمولانا رسول شاه جامعه بحرالعلوم کویټه.

(۳۴):خادمان دین متینی ټول په یوه قلم کافرکول د عقل په نزد مفتی پخپله کافر کیږي شرعي فتوای لاخپل پر ځای.

بیـــان دمولانا محمد یعقوب شرودی جامعه رشیدیه کوټـــه.

(۳۵):من کفر مسلما فقد کفر.

## دوهمه مسئله
## دسیفیانو رقص اوګډا

فائده: تصوف ته په قران او حدیث کې احسان او تزکیه وایې.

اود وجد تعریف علماوو داسې کړی دی چې الوجد مایصادف قلبک ویرد علیک بلاتعمد وتکلف[1].

وجد: بې چینی، دزړه نرمی، دپوستکي دزیګیدلو، دسکوت، سکون دژړا اوبې هوشۍ هغو حالاتو ته وایې چې په زړه باندې بې اختیاره واردیږی.

سبب ورته اکثر دالله تعالی څخه ویره اوخوف وي، کله غلبه دحزن او کله غلبه دخوشحالۍ وي.

امام قشیری لیکلی دي چې: (**وکل وجد فیه من صاحبه شئ فلیس بوجد**)[2].

اختیاری حالات جوړول وجد نه دی انتهی. (**ولایحل الااذاصارت الحرکات کحرکات المرتعش**)[3].

په وجد کې دصوفی حرکات داسې وي لکه دمرتعش په فتاوی تاتارخانیه کې دي چې (**ومن اباحه من المشائخ ذلك الذی حرکاته کحرکات المرتعش، وقال السری: شرط الواجد فی زعقته أن یبلغ الی حد لوضرب وجهه بالسیف لایشعر فیه بوجع**[4].

دواجد شرط دادی چې په مخ یې په توره ووهې نو چې هم په درد پوه نه شي.

حجل: دډیرې خوشحالۍ څخه په یوه پښه دخپل ځای څخه ولاړیدلو ته وایې.

---

(۱): الرسالة القشیریة ص (۹۷).

(۲): الرسالة القشیریة ص )۹۷(.

(۳): الصاعقة المحرقة صــ (٥٦).

(٤): الصاعقة المحرقة صــ ۲۹، شامی صــ ٥۷۷)

دوجد ،جذب اود حجل حالات دائم نه وي بلکې په سلفو باندې کله کله دبې هوشۍ، ژړا، دپوستکي زيګيدلو وغيره حالات راغلي دي.

په بعضو په ټول عمرکې فقط يوځل يادوه ځل موقتا داسې کيفيات راغلي دی.

دسيفيانو بريلويانو رقص او ګډا دصوفيه کرامو وجد اوجذب نه دی بلکې ددوی وجد دلاندې امورو مجموعه ده:

(۱):په قصد اوتکلف سره دتيونو او اوګو خوزول.

(۲):په خپل اختيار دکلابو په شان أو، أو اوغپېدل.

(۳):په خپل اختيار په يوبل بالخصوص په أمردانو (لغړزنو) غورځېدل.

دمسجد دستنې اوددېوال څخه ځان بچ کولی شي لکن په امردانو (لغړزنو) ورغورځېږي اوپه لغړزنو دورپريوتلو څخه ځان نه شي بچ کولی.

(۴):سرونه غورزول زګونه کول.

(۵):ښکته پورته کېدل.

۶-ددروغو څخه قصداً په ځان داسې کيفيت راوستل لکه پيريانو چې نيولی وي حالانکې دبس يا دديوال په سر ورباندې داسې کيفيت نه شي راتلی.

۷-همداسې ګډېدل او ګډېدل،حالانکې په وجد او حجل کې دوام نه وي.

۸-او داهرڅه دالله جل جلاله له وېرې نه وي بلکې داهرڅه دجاهلو پيرانو ددستمال دخوزلو مرهون منت وي.

منشأ ورته دجاهل پير اشارې اودستمال خوزول وي.

د سیفیانو د رقص بنیاد چا ایښی دی؟

**(۱):د دغو نام نهادو صوفیانو د رقص بنیاد شیطان ایښی دی.**

امام قشیری رحمه الله " المتوفی سنه **۴٦۵**" لیکلي دي چې ابو الحارث الأولاسي الصوفي فرمايلي دي چې یوه ورځ مې په خوب کی شیطان ولیدو چې ښي او چپ طرف ته یې ډلې ډلې خلک ولاړوو.

نو يوې ډلې ته یې وویل چی (**ارقصوا،فرقصوا اطيب ما يكون ثم قال لی يا ابا الحارث مااصبت شيأ اخل به عليكم الا هذا**)[1].

رقص وکړئ هغوی، رقص وکړو بيا شيطان ابو الحارث ته وویل چې صرف ددې رقص له لارې به تاسي ګمراه کوم.

**(۲)**:علامه قرطبی رحمه الله فرمایلی دی چی درقص الصوفيه بنياد سامری ایښی دی،(**واما الرقص والتواجد فاول من احدثه اصحاب السامری لما اتخذ لهم عجلاً له خوار قاموا يرقصون حواليه ويتواجدون فهو دين الكفار وعباد العجل**)[2].

درقص او تواجد بنياد سامري ایښی دی کله یې چې ورته د زیوراتو څخه خوسی جوړ کړو نو سامریانو ترې ګیر چاپیره رقص او تواجد شروع کړو.

**(۳)** :الشيخ محمد بن صفی الدين الحنفی الشامی رحمه الله (المتوفی سنه ۱۲۰۰ هـ)لیکلي دي چې (**اليهود اول من احدثوا السماع والرقص**)[3].

درقص الصوفيه بنیادیهودو ایښی دی لکه څنګه چې دقرطبی په حواله دسامریانو ذکروشو.

---

(۱):الرسالةالقشيرية ص ۳۷۷ باب السماع.

(۲):قرطبي سورة طه اية نمبر( ۱٤۲).

(۳):الصاعقة المحرقة على المتصوفة الرقصة المتزندقة ـص(۳۷).

## دتصوف په نوم ددې رقص په خلاف
## لېکل شوي کتابونه

دتصوف په نوم ددغو رقاصانو په خلاف ډېر کتابونه لېکل شوي دي يو څويې دادي:

(١): ذم السماع: لابي الطيب الطبري.

(٢): كف الرعاع عن محرمات اللهو والسماع: لأبي العباس الهيثمي رحمه الله.

(٣): رسالة في حكم السماع: للشيخ علي النوري رحمه الله.

(٤): جزء في تلبيس ابليس: لابن الجوزي رحمه الله.

(٥): جزء في تحريم السماع: للآجري رحمه الله.

(٦): نزهة الاسماع في مسألة السماع: لابن رجب الحنبلي.

(٧): الكلام على مسئلة السماع: لابن قيم الجوزي رحمه الله.

(٨): ذم الملاهي لابن ابي الدنيا.

(٩): الرهص والوقص لمستحل الرقص: للحلبي رحمه الله.

(١٠): فتيا في ذم الشبابة والرقص والسماع: لابن قدامه الحنبلي رحمه الله.

(١١): رسالة في السماع والرقص: للشيخ محمد بن محمد المنجبي الحنبلي رحمه الله.

(١٢): الصاعقة المحرقة على المتصوفة الرقصه المتزندقة للشيخ محمد بن احمد بن محمد ابو الفضل صفي الدين الحنفي الأثري الحسيني البخاري (المتوفي ١٢٠٠ هـ.

دسيفيانو بريلويانو درقص اوګډا اجمالی حکمونه:

**(۱)**:دغه رقص حرام دی[۱].

**(۲)**:دتصوف په نوم دغه رقص بدعت دی[۲].

**(۳)**:دتصوف په نوم ددغه رقص حلال گڼونکی کافر دی[۳].

**(۴)**:دتصوف په نوم دغه رقاصان مردود الشهادة دي (شاهديې نه قبلېږي)[۴].

**۵**-دتصوف په نوم دغه رقاصان دشراب خورو څخه هم بدتر دي[۵].

**۶** -دتصوف په نوم دغه رقص گناه کبیره ده او حلال گڼونکی يې کافر دی[۶].

**(۷)**:دتصوف په نوم دغه رقاصان دخرو په شان رمباړې وهي[۷].

**(۸)**:دتصوف په نوم دغه رقاصان دکفارو څخه هم زيات گمراهان دي[۸].

**(۹)**:دتصوفپه نوم دغه رقصان زنادقه دي[۹].

**(۱۰)**:د تصوف په نوم دغه رقاصان ساقط المروةدي انسانيت په کې نشته دی[۱۰].

**(۱۱)**:د تصوف په نوم ددغه رقصانو په اقتدا کې لمونځ نه دی جایز[۱].

---

(۱):شامی ج ۱ ص ۳۰۷ بیروت.

(۲):البریقه ج۲ ص (۱۳۳).

(۳):شامی ج۱ ص (۳۰۷).

(٤):فتاوی ابی السعود ص (٤٧٦.).

(٥):البریقه ج ۲ ص (۱۳۳).

(٦):البریقه ج۲ ص (۱۳٤).

(۷):البریقة ج۲ ص (۱۲۷).

(۸):البریقة ج۲ ص (۱۲۷).

(۹):عمدة القاری ج٦ ص (۲۷۱).

(۱۰):الامر بالاتباع ـص(۹۹).

(۱۲):د تصوف په نوم رقص د کفارو او سامریانو دین دی[۲].

(۱۳):د تصوف په نوم ددغو رقاصانو عمل مردود، ملعون، غلط او باطل دی[۳].

(۱۴):د هغه چا شاهدی هم نه قبلیږی چې ددغه رقاصانو مجلس ته حاضریږي[۴].

(۱۵):په هغه ځای لمونځ نه دی جایز په کوم ځای کې چې دغه رقاصانو رقص کړی وي تر څو ونه وینځل شي او یاپې خاورې ونه ویستل شي[۵].

(۱۶):دتصوف په نوم دغه رقص کوونکي اینسی شیطانان دي[۶].

د سیفیانو ددغه رقص په خلاف د حنفي فقهی عبارات(ا):په در مختار کی فرمایلي دی چی :(**ومن یستحل الرقص قالوا بکفره**)[۷].

علامه شامی رحمه الله ددی په تشریح کی فرمایلی دی چې :(**المراد به التمايل والخفض والرفع بحركات موزونة كما يفعله بعض من ينتسب إلى التصوف. وقد نقل فى البزازية عن القرطبى إجماع الأئمة على حرمة هذا الغناء وضرب القضيب والرقص. قال: ورأيت فتوي شيخ الاسلام جلال الملة والدين الكرمانى أن مستحل هذا الرقص كافر، وتمامه فى شرح الوهبانية. ونقل فى نور العين عن التمهيد أنه فاسق لا كافر. ثم قال: التحقيق القاطع للنزاع فى أمر الرقص والسماع يستدعى تفصيلا ذكره فى عوارف المعارف وإحياء العلوم، وخلاصته ما أجاب به العلامة النحرير ابن كمال باشا بقوله: ما فى التواجد إن حققت من حرج ولا التمايل إن أخلصت من بأس فقمت تسعى على رجل وحق لمن دعاه مولاه أن يسعى على الرأس.**

---

(۱):البريقة ج ۲ ص (۱۳۷).

(۲):البريقة۔ج۲ص(۱۳٤).

(۳):بلوغالمراملمولاناعبدالعلى الديوبندى ص(۲٤۲).

(٤):فتاوى ابى السعود ۔ص(٤۷٦).

(٥):البريقه۔ج۲ص(۱۲۷).

(٦):الصاعقة المحرقة صـ (۲۲).

(۷):كتابالجهادج٦ ص (۳۹٦).

**الرخصة فيما ذكر من الاوضاع عند الذكر والسماع للعارفين الصارفين اوقاتهم الى احسن الاعمال ،السالكين المالكين لضبط انفسهم عن قبايح الاحوال فهم لا يستمعون الا من الاله،ولا يشتاقون الا له،ان ذكروه ناحوا وان شكروه باحوا،وان وجدوه صاحوا،وان شاهدوه استراحوا،وان سرحوا فى حضرة قربه ساحوا،اذا غلب عليهم الوجد بغلباته،وشربوا من موارد اراداته،فمنهم من طرقته طوارق الهيبة فخروذاب،ومنهم من برقت له بوارق اللطف فتحرك وطاب،ومنهم من طلع عليه الحب من مطلع القرب فسكر وغاب،هذا ما عن لى فى الجواب والله تعالى اعلم بالصواب).**

د رقص څخه په موزونو حرکاتو سره کږېدل را کږېدل ټيټيدل او جيګيدل مراد دي،لکه بعضی تصوف ته منسوب خلک يې چې کوي.

په فتاوی بزازيه کې د علامه قرطبی رحمه الله په حواله په دې خبره اجماع رانقل شوې ده چې دا غزلې، شپيلي وهل او رقص حرام دی او فرمايلي يې دي چې ما د شيخ الاسلام جلال الملة والدين فتوی ليدلې ده چې ددغه رقص حلال ګڼونکی ته يې کافر ويلی دی او ټول تفصيل په شرح الوهبانيه کې دی.

(تر دې ځای پورې د شامی تحقيق خلاص شو).

بيايې وروسته د مجهولې تمريض په صيغه فرمايلي دي چې په (نور العين) کې د تمهيد څخه را نقل شوي دي چې ددې رقص حلال ګڼونکی فاسق دی او کافر نه دی بيايې فرمايلي دي چې د مسئلې د رقص او سماع لپاره قاطع تحقيق تفصيل غواړي، چې په عوارف المعارف او احيا العلوم کې يې ذکر کړی دی خلاصه يې هغه ده چې ابن کمال باشا ذکر کړې ده چې په تواجد کې ګناه نشته که متحقق شي(اکثر نه متحقق کيږی "ان" د شک لپاره دی).

او نه په کږيدلو کی باک شته چی په اخلاص سره وي(اکثر اخلاص نه وی "ان" د شک لپاره دی).

ته ودریدلی پیاده منډی وهی او څوک چی مولا بللی وی پکار دی چی په سر منډی ووهي.

ددې اوضاعو رخصت عارفینو ته دی چې خپل اوقات یې په ښکو اعمالو کې مصرف کړي وي.

سالکین وي او خپل ځان د خرابو حالاتو څخه کنټرول کولی شي.

پس دوی صرف د الله تعالی ته غوږ نیسی او صرف د الله تعالی شوق لري الخ.

داتحقیق شامی دبل چا څخه دتمریض په صیغه رانقل کړاوپه دې تحقیق کې هم دصوفیانو وجد ذکردی دسیفیانو رقص یې نه دی ذکر کړی.

(۲):علامه شامی رحمه الله وروسته په کتاب الحظر والاباحة کې یوځې دعدم جواز فتوی ورکړې ده فرمايي چې:(وفي الملتقى فقال): **وعن النبی (ص) أنه كره رفع الصوت عند قراءة القرآن والجنازة والزحف والتذكير، فما ظنك عند الغناء الذي يسمونه وجدا ومحبة فإنه مكروه لا أصل له في الدين**

قال الشارح: **زاد في الجوهرة: وما يفعله متصوفة زماننا حرام لا يجوز القصد والجلوس إليه، ومن قبلهم لم يفعل كذلك، وما نقل أنه عليه الصلاة والسلام سمع الشعر لم يدل على إباحة الغناء. ويجوز حمله على الشعر المباح المشتمل على الحكمة والوعظ، وحديث تواجده عليه الصلاة والسلام لم يصح، وكان النصراباذي يسمع فعوتب فقال: إنه خير من الغيبة، فقيل له هيهات بل زلة السماع شر من كذا وكذا سنة يغتاب الناس. وقال السري: شرط الواجد في غيبته أن يبلغ إلى حد لو ضرب وجهه بالسيف لا يشعر فيه بوجع اه، قلت: وفي التاترخانية عن العيون إن كان السماع سماع القرآن والموعظة يجوز، وإن كان سماع غناء فهو حرام بإجماع العلماء، ومن إباحة من الصوفية، فلمن تخلى عن اللهو، وتحلى بالتقوى، واحتاج إلى ذلك احتياج المريض إلى الدواء. وله شرائط ستة: أن لا يكون فيهم أمرد، وأن تكون جماعتهم من جنسهم، وأن تكون نية القول الاخلاص لا أخذ الأجر والطعام، وأن لا يجتمعوا لأجل طعام أوفتوح، وأن لا يقوموا إلا مغلوبين، وأن لا يظهروا وجدا إلا صادقين.**

والحاصل: **أنه لا رخصة فی السماع فی زماننا، لان الجنید رحمه الله تعالی تاب عن السماع فی زمانه اهـ.)**(۱).

دقرآن دقرأت په وخت آواز او چتول همدارنګه دجنازې په وخت کې همدارنګه دکافرانو سره دجګړې په وخت کې اودوعظ په وخت کې مکروه دی.

نوستاڅه ګمان دی په آواز اوچتولو باندې دغزلو اودسندرو په وخت کې هغه چې دوی، وجد او محبت ورته وايې پس بېشکه چې دا عمل مکروه دی په دین کې هېڅ اصل نه لري.

شارح فرمايلي دي چې په (الجوهرة) کېيې داخبره زياته کړې ده چې هغه عمل چې زمونږ دزمانې متصوفه يې کوي حرام دی ورتلل او کيناستل ورته جائزنه دي.

اوسلفو دارنګه عمل نه دی کړی او هغه روايت چې په هغې کې راغلي دي چې نبی علیه السلام شعر اورېدلی دی دغزلو په مباحوالی دلالت نه کوي همدارنګه يې جائز دي حمل کول ئی په مباحو اشعارو چې په حکمت او وعظ مشتمل وي او په کوم حديث کې چې نبی علیه السلام ته دتواجد نسبت شوی دی هغه حديث صحيح نه دی.

او نصر آباذی سماع کوله نو چاملامته کړو.

نصر آبازی ورته وويل چې سماع دغيبت څخه ښه ده نو په جواب کې ورته وويل شو چې هېڅ کله داسې نه ده بلکې دسماع شر دڅو کاله غيبت څخه هم زيات دی.

حضرت سری فرمايلي دي چې په چاچې وجد راغلی وي دهغه لپاره شرائط دادي چې وجد به دومره بې اختياري وي اودومره به په ځان نه پوهېږي چې که چېرته يې په توره په مخ ووهې نو هم په درد پوه نه شي.اه

---

(۱): ص(۵۷۷).

زه وايم چې په تاتارخانيه کې دعيون په حواله راغلي دي چې که سماع، دقرآن يادوعظ سماع وي نوبيا جائز ده اوکه دغزلو سماع وي نوبيا په اجماع سره حرامه ده اوکومو صوفيه وو چې سماع ته جائزه ويلې ده نوهغه دهغه چا لپاره ده چې دلهو اولعب څخه يې ځان خالی کړی وي اوپه تقوی يې ځانښکلی کړی وي اوسماع ته دومره محتاجه شوی وي لکه چې دواء ته څومره محتاجه دی بيا ددی سماع لپاره شپږ شرطه دي(۱):چې بېړيری (لغړزنی) به په کې نه وي.
(۲):تولبه ديو نظر والاوي يعنې صوفيان به وي (۳):چې نيت يې خالص دالله رضاوي. (۴):دروپو اوڅښناک نيت په کې نه وي.(۵):چې کله پاڅېږي نو مغلوب الحال وي.(۶):خپل وجد نه ظاهروي مګر رشتينی وي.
حاصل دخبرې دادی چې زمونږ په زمانه کې دسماع رخصت نشته ځکه چې جنيد بغدادی رحمه الله په خپله زمانه کې دسماع څخه توبه ويستلې وه.
(۳):په فتاوی عالمګيری ج ۵ ص ۳۱۹ کې يې د(**الباب الرابع فی الصلاة والتسبيح وقراءة القرآن والذکر والدعاء ورفع الصوت عند قراءة القرآن**).
په آخر کې فرمايلې دي چې (**رفع الصوت عند سماع القرآن والوعظ مکروه ومايفعله الذين يدعون الوجد والمحبة لااصل له ويمنع الصوفية من رفع الصوت وتخريق الثياب کذافی السراجية**).
دقرآن اود وعظ داوريدلو په وخت کې چيغې وهل مکروه دي اوهغه چيغې چې دوجد اود محبت دعوه کوونکي يې وهي په دين کې اصل نه لري اوصوفيه به دچيغو وهلو اودجامو شکولو څخه منعه کولی شي.
(۴):همدارنګه يې په عالمګيری ج ۵ ص ۳۵۲ دالباب السابع عشر لاندې ليکلي دي چې:

(فی اليتيمية سئل الحلوانی عمن سمو أنفسهم بالصوفية واختصوا بنوع لبس لبسوه واشتغلوه باللهو والرقص وادعوا الأنفسهم المنزلة؟
فقال: "أفتروا على الله كذبا أم بهم جنة"
وسئل إن كانوا زائغين عن الطريق المستقيم: هل ينفون من البلاد لقطع فتنتهم عن العوام؟
فقال: إماطة الأذی أبلغ فی الصيانة وأمثل فی الديانة وتمييز الخبيث من الطيب أولی وأزكی وأولی.
كذا فی التتارخانية "قال - رحمه الله تعالى - السماع والقول والرقص الذي يفعله المتصوفة فی زماننا حرام لايجوز القصد إليه والجلوس عليه وهو والغناء والمزامير سواء، وجوزه أهل التصوف واحتجوا بفعل المشايخ من قبلهم، قال: وعندي أن ما يفعلونه غير ما يفعله هؤلاء؛ فإن فی زمانهم ربما ينشد واحد شعرًا فيه معنی يوافق أحوالهم فيوافقه، ومن كان له قلب رقيق إذا سمع كلمةً توافقه علی أمر هو فيه ربما يغشى على عقله فيقوم من غير اختيار وتخرج حركات منه من غير اختياره، وذلك مما لايستبعد أن يكون جائزاً مما لايؤخذ به، ولايظن فی المشايخ أنهم فعلوا مثل ما يفعل أهل زماننا من أهل الفسق والذين لا علم لهم بأحكام الشرع، وإنما يتمسك بأفعال أهل الدين، كذا فی جواهر الفتاوي).
په فتاوی (اليتيمية) کې لیکلي دي چې دامام حلوانی رحمه الله څخه دهغو خلکو په باره کې پوښتنه وشوه چې ځانونو ته صوفیه وایې اودنورو خلکو څخه جدا خاص لباس یې وي او په لهوه اورقص مصروف وي.
اودځان لپاره دمرتبې دعوه کوي نو امام حلوانی رحمه الله ورته وفرمایل چې دغو صوفیانو دالله جل جلاله پورې دروغ تړلي دي ،وایې چې الله تعالی مونږته درقص حکم کړی دی، حال داچې الله تعالی درقص حکم نه دی کړی ،نوالله تعالی پورې دروغ وایې.
بیا ترینه پوښتنه وشوه چې آیا که دغه صوفیان د مستقیمې لارې څخه کاږه روان وي نو آیا دښارونو څخه به شړلی شي چې دعوامو څخه فتنه ختمه شي؟

نو امام حلوانی رحمه الله ورته وفرمایل چې هودغه رقاصان صوفیان وشړئ ځکه چې دلارې څخه ضروری شیان لری کول ډیربنه حفاظت دی اوډیره ښه دینداري ده.
اوخبیث (رقاصان صوفیان ) دطیب اوښو خلکو څخه جداکول ډیر پاکیزه اوبهترعمل دی.
مصنف رحمه الله فرمایلي دي چې زمونږ دزمانې متصوفه چې کومه سماع کوي غزلې وایې اورقص کوي حرام دی ورتلل اوکیناستل ورسره نه دي جائز.
اوددغو متصوفه وو سماع اورقص دسندرو اومزامیرو سره یوشان ته دی.
بیایې اعتراض رانقل کړی دی چې اهل تصوف خو دمتصوفه وو سماع اورقص ته جائزوایې
دلیل یې دادي: چې مخکینیو مشائخو داعمل کړی دی نو مصنف رحمه الله جواب ورکوي چې زمونږ دزمانې متصوفه چې کوم عمل کوي هغه دمخکینیو مشائخو دعمل سره فرق لري،ځکه چې مخکې زمانه کې به کله یوشعر ولوستل شو په هغې کې به داسې معنا وه چې دشیخ دحال سره به موافقه وه نوچې دشیخ زړه به نرم وو بې هوشه به شوبې اختیاره به ودرېدلو اوغیر اختیاري حرکات به ترینه صادریدل اودابعیده نه ده چې جائزه شي اودهغواعمالوڅخه شي چې مؤاخذه ورباندې نشته، اوپه هغومخکنیو مشائخوباندې داګمان مه کوه چې هغوی زمونږ دزمانې دفاسقواوبې علمه متصوفه وو په شان سماع اورقص کړی دی اوبېشکه تمسک ددینداره خلکوپه عمل کېږي. انتهی
فائده:په دې عبارت کې یې ددې زمانې رقاصانو ته متصوفه ویلي دي داسې نه ده چې دصوفیه وو رقص ته یې جائزاودمتصوفه وو رقص ته یې ناجائزویلي دي بلکې رقاصانوته یې متصوفه ویلي دي.

نولهذا سيفيان رقاصان متصوفه دي دوهم داچې تول مستندمدارس اومشائخ سيفيانو ته متصوفه وايې،همدارنگه يې ورته بې علمه او فاسقان ويلي دي اوددې زمانې رقص ته يې حرام ويلی دی.

(۵):په حاشية الطحطاوی(۳۱۹)كتاب الصلاة فصل فی صفة الاذكار كې فرمايلي دي چې: (**واماالرقص والتصفيق،والصريخ وضرب الأوتار،والصنج والبوق الذی يفعله بعض من يدّعی التصوف فانه حرام بالاجماع لانهازی الكفاركمافی سكب الانهر،وفی مجمع الأنهرعن التسهيل الوجدمراتب وبعضه يسلب الاختيارفلاوجه لمطلق الانكاروفی التتارخانيةمايدل علی جوازه للمغلوب الذی حركاته كحركات المرتعش اهـ**)

رقص (گډېدل)چكې وهل ، چيغې وهل ،رباب وهل اوښكروهل هغه چې بعضې مدعيان دتصوف يې كوي نوداپه اجماع سره حرام دی ځكه چې داد كفارو عمل دی.

اوپه مجمع الانهركې يې دتسهيل په حواله ليكلي دي چې دوجد لپاره مراتب دي په بعضومراتبوكې اختيارختم شي (نوددغه وجد څخه چې اختيارپه كې ختم شي) انكارنه دی په كار په فتاوی تاتارخانيه كې راغلي دي چې دهغه چاوجد جائزدی چې حركات يې دومره بې اختياره وي لكه دمرتعش حركات. انتهی

فائده:دسفيانووغيره رقاصانوحركات داسې نه دي لكه دمرتعش هغه په رقص كې دديوال څخه ځان بچ كوي دمسجددستنې څخه ځان ساتي صرف په لغړزنو ورغورځي.

(۶):علامه ابن نجيم الحنفی رحمه الله فرمايلي دي چې:(**وقال الامام شمس الأئمه السرخسی ففی هذالحديث بيان كراهة رفع الصوت عندسماع القرآن والوعظ،فتبين به ان مايفعله الذين يدعون الوجد والمحبة مكروه لااصل له فی الدين وتبين به أنه يمنع المتقشفة وحمقی اهل التصوف ممايعتادونه من رفع الصوت وتمزيق الثياب عندالسماع لان ذلك مكروه فی الدين عندسماع القرآن والوعظ فماظنك عندسماع الغناء**[1]).

(۱):البحرالرائق ج ٥ صـ (۸۲).

الامام شمس الایمه السرخسی رحمه الله فرمایلي دي چې په حدیث کې دقرآن دتلاوت په وخت کې اودوعظ په وخت کې دآوازداوچتولو څخه منعه راغلې ده نوددې څخه معلومه شوه چې جاهلان صوفیان چې دوجد اوپه الهی محبت کې دغرقېدلودعوه کوي اوپه دې بنیاد چې کوم حرکتونه کوي مکروه اوناجائزدي اوددې زمانې احمق صوفیان به دوجد اودمحبت په نوم دچیغووهلو اوجاموشکولو څخه منع کولی شي ځکه چې دا اعمال دقرآن دتلاوت په وخت کې مکروه دي نو دسماع په وخت کې به څرنګه جائزشي. انتهی

**(۷) : قال ابن الشحنه فی شرحه علی المنظومة الوهبانیة فی کتاب السیر: ومن یستحل الرقص قالوابکفره وسیما اذابالدف یلهوویزمر**[1].

درقص الصوفیه حلال ګڼونکی ته فقهاوو کافر ویلی دی.

**(۸) :(وذکر البزازایضاً فی کتاب التکفیر: قراء القرءان علی ضرب الدف والقضیب, یکفر لاستخفافه وادب القران آن لایقرآفی مثل هذه المجالس والمجلس الذی اجتمعوا فیه للغنا ءوالرقص کمایقرآفی البیع والکنایس لآنه مجمع الشیاطین,انتهی**

**قال صاحب حیات القلوب :: قوله مجمع الشیاطین: یحتمل ان یکون مراده من الشیاطین شیاطین الجن ,وهم یجتمعون فی مجلس الرقص والغناء , ویحتمل آن یکون مراده من الشیاطین: شیاطین الانس وهم المتصوفه ,فانهم آشدمن شیاطین الجن)**[2].

په شپیلۍ اوچمبه باندې دقرآن لوستل کفردی،دقران په ادابو کې داهم دي چې په داسې مجالسو کې ونه لوستلی شي،همدارنګه په هغو مجالسو کې دې هم نه لوستل کیږي چې دغزلو اودرقص لپاره په کې راجمعه شوي وي لکه دیهودو

---

(۱):الصاعقة المحرقة ص(۲۱).

(۲):الصاعقة المحرقةلمحمدبن صفی الدین الحنفی ص(۲۲).

اودنصاراوو په عبادتخانو کې چې نه لوستل کيږي ځکه چې په داسې مجالسو کې شيطانان راجمعه کيږي انتهی.

صاحب دحيات القلوب فرمايلي دي چې: دمجمع الشياطين دوه معناګانې دي.

اول داچې: جنی شيطانان مرادشيځکه چې جني شيطانان درقص اوغزلو مجلس ته رازي.

دوهم داچې: انسي شيطانان مرادشي اوانسي شيطانان دمتصوفه وو(رقص کونکو) نه عبارت دي اودغه متصوفه يعنی رقص کونکي دجني شيطانانو يعنې دابليسځخه بدتر دي.

**(٩): وفی شرح الکنز للمولی العينی بعد ماذکر قوله عليه السلام: کل لعب ابن ادم حرام الاثلاثة: ملاعبة الرجل أهله وتأديبه فرسه ومناضلته بقوسه ,,,وهذان صريح فی تحريم الرقص الذی يسميه المتصوفه الوجدوسماع الطيب وانماهوسماع فيه انواع الفسق وانواع العذاب فی الاخره**(1).انتهی.

علامه عينی الحنفی رحمه الله دکنز په شرحه کې دنبی عليه السلام ددې حديث په تشريح کې چې: دانسانانو ټولې لوبې حرامې دي بغير ددغو دريولوبوڅخه ,چی داس ترينګ دی، دليندې ترينګ دی اودخپلې بي بي سره لوبې دي ,,, اودابنکاره تصريح ده چې هغه رقص حرام دی چې متصوفه ورته وجد اوښه سماع وايي بې شکه چې په دې کې مختلفې نوعې فسق او مختلفې نوعې دآخرت دعذاب په کې دي.

(١٠):علامه عينی الحنفی رحمه الله په شرحې دتحفه کې فرمايلي دي چې:

**(ويجب منع الصوفية الذين يدعون الوجد والمحبة عن رفع الصوت وتمزيق الثياب عند سماع الغناء لأن ذالك-ای رفع الصوت وتمزيق الثياب-حرام عند سماع القرءان ,فکيف عند سماع**

---

(١):الصاعقة المحرقة ص(٢٢).

**الغناء الذی هو حرام, خصوصا فی هذا الزمان الذی اشتهر فيه الفسق وظهرت فيه انواع البدع واشتهرت فيه طايفة تحلوا بحلية العلما, وتزيوا بزی العلماء, والحال ان قلوبهم ملئت من الشهوات الفاسدة, وهم فی الحقيقة ذئاب, نعوذ بالله من شرهم)**[1].

واجبه ده چې صوفيان دغزلو داورېدلو په وخت کې دچيغو وهلو اودجامو دشکولو څخه منعه شي, ځکه چې دقران داورېدلو په وخت کې چيغې وهل اوجامې شکول حرام دي، نودحراموغزلوداورېدلو په وخت کې به څرنګه نه وي حرام؟خصوصاً پدې زمانه کې چې فسق اوبدعتونه پکې ښکاره دي، او داسې خلک را ظاهر شوي دي چې شکلونه اولباس يې دعلماوو دی اوزړونه يې دفسق څخه ډک دي اوپه حقيقت کی ليوان دي, ددوی (رقاصانو صوفيان) دشر څخه الله تعالی ته فناه ښسو.

(۱۱):همدارنګه علامه عينی رحمه الله فرمايلي دي چې:( **فالعجب منهم ان يدعون محبة الله ويخالفون سنة رسوله ' لانهم يصفقون بآيديهم 'ويطربون ويغنون ويصعقون'وکل ذلك جهل منهم، فمن ادعی محبة الله وخالف سنة رسول الله فهو کذاب ،وکتاب الله يکذبه.**

**ولاشك فی انهم لايعرفون مالله ولايريدون مامحبة الله، وهم يصورون فی انفسهم الخبيثة صورة معشقة، وخيالا فاسدا، فيظهرون بذالك وجدا عظيماً، وبکاءً جسيما، وحرکاتا مختلفه، وقعقعة عظيمة،والازباد تنزل من افواههم، حتی ان الجهال وحمقی من العامة يعتقدونهم ويلازمون، وينسبون انفسهم اليهم ويترکون شريعة الله ورسول الله، فماهم الا فی الدعاوی الفاسدة، والاقوال الکاسدة،اعاذنالله واياکم من شر هذه الطايفة، ومن شر الجنة والناس 'انتهی کلام العينی رحمه الله'شرح التحفه'بحواله الصاعقة المحرقه'ص ۲۴.**

تعجب دی چې دغه (رقاص صوفيان) دنبی عليه السلام دسنتو مخالفت کوي، چکې وهي، مستي کوي ،غزلې وايې اوغورزي راغورزي اوبياهم دالله تعالی

(۱):الصاعقة المحرقة ص(۲۳).

دمحبت دعوه کوي ، او داتهول ددوی جهالت دی ، ځوک چې دنبی علیه السلام دسنتو دمخالفت (درقص کولو) باوجود دالله تعالی دمحبت دعوه کوي نو هغه سخت دروغژن دی ، دالله تعالی کتاب ورته دروغژن وايې ، اوپه دې کې شک نه شته چې دغه (رقاصان صوفیان) نه الله تعالی پيژني اونه دالله تعالی محبت، اودوی( چې جذب کيږي ) نويو پخپل خبیث نفس کی يو خبيث عشقي(دښځې ياد يېږيرې لغړزني هلک) صورت ذهن ته راولي اوغلط (دزنا اولواطت) خيال شروع کړي نوپه دې سره غټه بې حالي اوژړا ظاهره کړي، اومختلف حرکات شروع کړي، رمباړې وهي، دخولې ځخه يې زګونه غورزيږي، تردې چې جاهلان اوبې عقله عوام وربانددې نېکه عقيده جوړه کړي، ددوی مريدان اومنجاوران شي، همدوی ته ځانونه منسوب کړي(مثلا زان ته سيفی وغيره وايې) بس دجاهل پير پسې روان وي شريعت اودنبی عليه السلام سنت يې پرېښي وي، دوی په فاسده دعوه کې دي، ددوی خبرې کوټه اوباطلې دي، الله تعالی دې ددې (رقاصانو صوفيانو) دشر ځخه مونږ وساتی، اوالله تعالی دې مونږ دپيريانو اوانسانانو دشر ځخه وساتي،دعلامه عينی رحمه الله خبره ختمه شوه.
(۱۲):رقاص پير په منځ پرتوګ لړلی وو اوجاهلو مريدانويې پهاوښکو ځادرونه لامده کړی وو :**وذكر صاحب الكشاف فى تفسيره فى سورة آل عمران: عندقوله تعالى:قل ان كنتم تحبون الله فاتبعونييحببكم الله – (وعن الحسن:زعم اقوام على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم آنهم يحبون الله فأراد أن يجعل لقولهم تصديقامن عمل، فمن ادعى محبة الله وخالف سنة رسول الله فهوكذاب،وكتاب الله يكذبه ،واذارآيت من يذكر محبة الله وخالف ويصفق بيده مع ذكرها ويطرب وينعر ويصعق فلاشك فى انه لايعرف ماالله ولايدرى مامحبة الله؟ وماتصفيقه وطربه ونعرته وصعقته الالآنه تصور فى نفسه صورة مستمحلة معشقة فسماها الله بجهله ودعارته،ثم صعق وطرب ونعر وصعق على تصورها-**

**وربما رآيت المنى قدملآازارذالك المحب عندصعقته،وحمقى العامة حواليه قدملأ اوحينئذارداءهم بالدموع لما رفقهم من حاله)-انتهى كلامه.**

صاحب دتفسير كشاف دقل ان كنتم تحبون الله فاتبعوني په تشريح كې دحسن بصري رحمه الله قول رانقل كړى دى چې: دنبى عليه السلام په زمانه كې بعضو خلكو دمحبت دعوه كوله نو الله تعالى ددوى ددعوى دتصديق لپاره معيار عمل مقرر كړو ،نوڅوك چې دالله دمحبت دعوه كوي اوبيادنبى عليه السلام دسنتو څخه مخالف وي نوداسخت دروغژن دى د الله تعالى كتاب ورته دروغژن وايى، اوچې كله دې داسې خلك ولېدل چې دالله تعالى سره د محبت خبرې كوي اومحبت دذكرسره چک چکې وهي اومستي كوي رمباړې وهي اوغورزي راغورزي نوپه دې كې شک نشته چې دغه رقاص نه الله پيژني اونه دالله تعالى محبت،اودده دچكو ،مستي رمباړواوغورزيدلو راغورزيدلو وجهه داده چې ده خپل خبيث فكر ته دكومې (ښځې يا دبېرېرې لغړزني هلک) عشقي صورت راوستى دى بيايى چکى ، مستى، رمباړې اوغورزيدل راغور زيدل شروع كړي دي سبب ورته داعشقى صورتونه دي،اوډېرځلي داسې شوي دي چې (دنام نهاد پيردښځواودهلكانودعشقى صورتونو په فكر كې انزال شوى وي) پرتوګ يې په منى لړلى وي، او(مريديى داخيال وي چې پيريې جذب دى) نو زړه يې پخپل پير خوګ شوى وى او دژړاڅخه يې څادر په اوښكو لوند كړى وي.

والمسايل الفقهية النقلية لامدخل للاعتزال فيه اصلافلايرد انه معتزلى[1].

(۱۳): صاحب دفتاوى تاتارخانيه فرمايلي دي چې: **هل يجوز الرقص والسماع؟**

---

(۱):الصاعقة المحرقه ص (۲٦).

الجواب: **لایجوز,,وذکرفی الذخیرة انه کبیرة ومن اباحه من المشایخ فذالك للذی صارت حرکاته کحرکات المرتعش وانه ایضالیس فی الشرع رخصة منه.**

سوال:ایارقص اوسماع جایزه ده؟

جواب: نه ده جایز،اوپه ذخیره کې دي چې رقص اوسماع کناه کبیره ده ،اوپه مشائخو کې چې چا ورته مباحه ویلې ده نو هغه دهغه چا په باره کې ده چې دهغه حرکات داسې بې اختیاره شي لکه دمرتعش اوګوزڼ مرض والا(سیفیان داسی نه وي بلکې ددیوال څخه هم ځان ساتي دستنې څخه هم ځان ساتي چې څوک جیب ته ګوتې وروړي هم نه یې پریږدي، صرف په یوبل ورغورزي خصوصاً په لغړ زنوباندې په ورپریوتلوکی بې حاله وي.

بیایې وروسته دعوارف تحقیق اوشرایط رانقل کړي دي لکه مخکې دشامي (کتاب الحظر والاباحة)په حواله ذکرشو په اخر کې یې خپله فیصله لیکلې ده چې:

**والحاصل انه لارخصة فی باب السماع فی زماننالان جنیداتاب عن السماع فی زمانه**[1],,

(۱۴):**وفی جواهر الفتاوی : ان السماع والقول والرقص الذی یفعله المتصوف فی زماننا حرام لایجوز القصد والجلوس الیه وهووالغناء والمزامیر سواء والمشایخ قبلهم فعلواغیرمافعل هولاء)**[2].

سماع غزلې اورقص چې زمونږ دزمانې متصوفه یې کوي حرام دی، ورتلل اوکیناستل ورسره نه دي جایز، اورقص داسی دی لکه سندری او ډمتوب، مخکنیو مشائخو داسې نه کول لکه دنن صبا (نام نهاد صوفیه یی چی کوی).

(۱۵):**وذکر فی جواهر الفتاوی ایضا فی کتاب الکراهیة،فی الباب الخامس، سما الغناء وضرب القضیل والتصفیق والك خلخکة والرقص وتمزیق الثیاب الذی یفعله المتصوفة وغیرهم**

---

(۱):بحواله – الصاعقة المحرقة ص (۲۸).

(۲):عوارف المعارف ص ۱۱۴علی هامش الجزء الخامس من الاحیاء ،بحواله الصاعقة المحرقه ص (۲۹).

**لايعرف لمثل هذا فى الشرع جواز، وهو محظور شرعا، وفيه الاثم الكبير، وهو من الملاهى اللتى توجب القدح فى العدالة والامتناع عنه واجب، هكذا ذكروا وهو الصحيح,, انتهى.**

غزلې اورېدل، شپيلۍ (نل وهل)، چکې وهل، رقص کول، جامې شکول، چې زمونږ دزمانې متصوفه وغيره ئې کوي په شريعت کې جايز نه دي، په شريعت کې ممنوع دی، په دې کې سخته ګناه ده، اودا دلوبو اوساعت تېريوڅخه دي چې عدالت ته نقصان رسوي، ددې څخه ځان ساتل واجب دي، علماوو همداسې ليکلي دي او همدا صحيح ده.

فايده: ددې عبارت معنا داده چې څوک چې رقص کوي دامتصوفه دي، دامعنا نده چې: دمتصوفه وو رقص ناجايز دی اودصوفيه وو جايز دی، دفقهاوو په يوعبارت کې هم داسې نه شته چې دصوفيه وو رقص جايز دی، لهذاسيفيان متصوفه دي ، همدارنګه دافغانستان اوپاکستان ټول مستند مدارس ، مشايخ اومفتی صاحبان سيفيانو ته ګمراهان او متصوفه وايي.

**(۱۶): وذكرفى الحاوى المنية لصاحب المجتبى: السقوط عندقراءة القران اوعندالتهليل اوالتسبيح على طريق الوجديكره كراهة تحريم، وقيل: يكفر، وكذالرقص وضرب الرجل على الارض عندذالك.** [1]

دقران کريم دتلاوت په وخت کې غورزېدل راغورزېدل همدارنګه دلااله الاالله 'دذکر په وخت کې ياد, سبحان الله, په وخت کې غورزېدل راغورزېدل مکروه تحريمي دي او بعضو علماوو ورته کفر ويلی دی همدارنګه رقص اوپښې په ځمکه وهل هم حرام دي اوبعضو علماوو ورته کفر ويلی دی.

**(۱۷): وفى شرح الكنز المسمى بألبحرالرايق للعلامه ابن نجيم رحمه الله فى كتاب العيدين: وتمنع الصوفية من رفع الصوت والصعق، وصرح بحرمته العينى فى شرح التحفه، وشنع على من يفعله مدعيا آنه من الصوفيه** [2]،،

(۱): ألصاعقة المحرقة ص (۳۱).

(۲): الصاعقة المحرقة ص(۳۱).

صوفيه به دڅېغو وهلواودځان دغورزولو راغورزولوڅخه منعه كولي شي، علامه عينى رحمه دتحفې په شرحه كې دصوفيه وو دغو غورزيدلو راغورزيدلو ته صراحتا حرام ويلي دي،اوهغو مدعيانو دتصوف ته يې ډېر بد ويلي دي چې چيغې وهي اويوپربل غورزي راغورزي.

(١٨): **وفى جواهر الفقه: السماع والرقص الذى يفعله المتصوفة فى زماننا حرام الخ كذا فى شرح مختصر الوقايه للبرجندى فى كتاب الكراهية**[1].

سماع ،غزلې اورقص چې زمونږ دزمانې متصوفه يې كوي حرام دي.

(١٩): په٦٥١هجرى كې داحنافو ،شافعيه وو ،مالكيه وواوحنابله ووعلماوو اومفتيانو كرامو څخهيوه استفتاءوشوه چى(**ماتقول السادات الفقهاءوايمة الدين وعلماءالمسلمين،وفقهم الله لطاعته واعانهم على مرضاته،فى جماعة المسلمين وردوا الى بلد فقصدوا الى المسجد .وشرعوايصفقون ويغنونويرقصون تارة بالكف وتارة بالدف والشبابه.فهل يجوزذلك فى المسجد شرعا؟افتوناماجورين رحمكم الله**).

**فقالت الشافعيه: الرقص لهوومكروه يشبه الباطل ومن قال به ترد شهادته'والله اعلم**

وقالت المالكيه: **يجب على ولاة الأمورضربهم وردعهم واخراجهم من المساجد حتى يتوبواويرجعواوالله اعلم.**

وقالت الحنابلة: **لايصلى خلفه ولاتقبل شهادته ولايقبل حكمه ان كان حاكما فهوعلى يده فاسدوالله اعلم.**

وقالت الحنفيه: **الحصير اللتى يرقص عليها لايصلى عليها حتى تغسل،والأرض اللتى يراالتييرقص عليهالايصلى عليهاحتى يحفر ترابهاويرمى والله اعلم.**

**الصاعقة المحرقة تأليف محمدبن صفى الدين الحنفى(المتوفى ١٢٠٠ هجري).**

څه وايې فقهاء دهغوخلكومسلمانانو په باره كې چې په مساجدوكې چكې وهي،غزلې وايې اورقص كوى؟

---

(١):الصاعقة المحرقة(٣٢).

نوشوافعو وفرمايل چې رقص مکروه دی دباطل سره مشابه دی اودقاصانو شاهدي نه قبليږي.

مالکيه وو وفرمايل چې په حاکمانو واجبه ده چی ويې وهي ، ويې ر‌ټي اودمساجد څخه يې اوباسي تردې چې توبه وباسي اودخپل عمل څخه رجوع وکړي.

حنابله وو وفرمايل چی ددغورقاصانوپسې لمونځ نه کيږي ،شاهدييې نه قبليږي،فيصله يې نه قبليږي اګرچې حاکم وي اوکه نکاح يی تړلې وي نوهغه هم فاسده ده.

اواحنافو وفرمايل چې: هغه پوزکی اوفرش چی رقص وربانديې شوی وي په هغې لمونځ مه کوئ ترڅوموچې وينځلی نه وي، اوپه هغه ځمکه هم لمونځ مه کوئ په کومه ځمکه چی رقص شوی وي ترڅوموچې ترې خاورې ويستلې نه وي.

(۲۰):بعضې خلک وايي: چې دنبی عليه السلام په وخت کې حبشو په مسجد کې معاذالله رقص کړی وو نوحافظ ابن حجر رحمه الله په جواب کی فرمايلی دی چې: **واستدل قوم من الصوفية بهذالحديث على جواز الرقص وسماع الات الملاهى ورده الجمهور باختلاف القصدين فان لعب الحبشة بحرابهم كان للتمرين على الحرب فلايحتج به للرخص فى اللهو**[1]. **انتهى.**

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: **وأماماابتدعه الصوفية فى ذلك: فمن قبيل مالايختلف فى تحريمه لكن النفوس الشهوانية غلبت على كثيرممن ينسب الى الخير،حتى لقدظهرت من كثيرمنهم فعلات المجانين والصبيان،حتى رقصوا بحركات متطابقة،وتقطيعات متلاحقة وانتهى التواقح بقوم منهم الى ان جعلوهامن باب القرب وصالح الاعمال...وهذاعلى التحقيق من اثارالذندقة**[2].

(۱):فتح الباريج۲ص(٤٤۲).

(۲):فتح الباری ج۲ص (٤٤۲).

(۲۱):صاحب دفتاوى بزازيه فرمايلي دي چې :(**وغرضه استماع الدف والمزمار واللعب بالرقص الذى احدثه اولا السامرى حين اخرج لهم عجلا جسداله خوار، نقل صاحب الهداية ان المغنى للناس انما لاتقبل شهادته لانه يجمعهم على كبيرة، والقرطبى على ان هذا الغناء وضرب القضيب والرقص حرام بالاجماع عندمالك وابى حنيفة والشافعى واحمد ذكر ذلك فى مواضع من كتابه وسيد الطايفة الشيخ احمد اليسوى صرح بحرمته ورأيت فتوى شيخ الاسلام جلال الملة والدين الكرمانى ان مستحل هذا الرقص كافر**)۔(۱).

دصوفيه وو درقص اول ايجاد سامرى كړى دى اودارقص دڅلورو واړو امامانوپه نيزحرام او حلال ګڼونكى يې كافردى.

(۲۲):ملاعلى قارى رحمه الله فرمايلي دي چې :(**لاالذكر باللسان المشتمل على صياح وانزعاج وشدة تحريك العنق واعوجاج كمايفعله بعض الناس زاعمين ان ذلك جالب للحضور وموجب للسرور حاشالله بل سبب الغيبوبة والغرور**)(۲).

هغه ذكرچې په احاديثو مباركه ووكې راغلى هغه دچيغو اودسرونو دغورځولو راغورځولو اودغاړې دغورځولو راغورځولو اودشاته اودمخته كېدلو والا ذكرنه دى لكه څرنګه چې بعضې خلک يې كوي اوهمدغه خلک بيادا فكر كوي چې دغه (باطل)عمل سبب دحضوردزړه دى الله تعالى ددې څخه پاک دى.

بلكې دغه سرونه غورځول راغورځول دالله تعالى څخه دلرې والي سبب دى.

(۲۳):(**سئل فى متصوفة العصر الذين يرقصون حالة الذكر ويريدون بذلك القربة،فما الحكم فى ذلك،هل هو مباح اوحرام،وهل يمنع فاعل ذلك ام كيف الحكم؟**

**اجاب:قال فى الصرة الفتاوى ورقص الصوفية حرام بالاجماع وكافر مستحله ولاتقبل شهادة من حضر مجالس هذا النوع كذا فى مجمع الفتاوى.**

**وقداجاب عن مثل هذا السوال شيخ الاسلام الاجل الزاهد الامام ابوبكر الطرطوشى رحمه الله فقال فى اثناء جوابه واما الرقص والتواجد فأول من احدثه اصحاب السامرى لما اتخذهم**

---

(۱):بزازيه ج ٤ صـ (۳٤۹)

(۲):مرقات ج ٥ صـــ (٥٥٦).

**مجلاله خوار قاموير قصون ويتواجدون فهودين الكفار وعباد العجل وانما كان مجلس النبى صلى الله عليه وسلم مع اصحابه كأنما على رؤسهم الطير من الوقار فيجب على السلطان ايدالله به الدين وقمع به المعتدين ان يمنعهم عن ذلك لانه نهى عن المنكرولايحل لاحد يؤمن بالله تعالى واليوم الآخران يحضرمعهم) انتهى** [1].

هغه خلک چې ځانونو ته صوفيان وايې او د ذکر په وخت کې رقص کوي سرونه غورځوي راغورځوي او خپل د غه عمل ثواب ګڼي او وايې چې په دې عمل سره مونږ الله تعالى ته نږدې کېږو نو داسې حلقې په شريعت کې څه حکم لري؟

آيامباحې دي او که حرامې؟

آيا دې حلقو والا به منعه کولی شي او که نه؟

جواب: دذکرپه حلقوکې دصوفيانورقص (سرونه غورځول راغورځول) په اتفاق اوپه څلورو مذاهبو کې حرام دي او څوک چې دصوفيه وو د غه رقص حلال ګڼي هغه کافر دی او څوک چې د غو خلقو ته حاضرېږي د هغه شاهدی نه قبلېږي.

د غه رقص او تواجد (دذکرپه حلقوکې ځان په ځمکه غورځول راغورځول) اول دسامری کافرمريدانو دنياته راوړی دی.

کله چې سامری دزيوراتو څخه خوسی جوړکړو نومريدانويې رقص او وجد شروع کړو.

دنبی عليه السلام صحابه کرام رضوان الله عليهم اجمعين خوبه دنبی عليه السلام په مجلس کې داسې قرار او ارام ناست وو لکه په سرونويې چې مرغان ناست وي.

---

(١): فتاوى ابى سعود صـ (٤٧٦).

نوپه اسلامی بادشاهانولازمه ده چې دارقاصان ددې ځخه منع کړي اوهېڅ مسلمان ته چې په الله تعالی اوپه ورځ دآخرت ایمان لري نه ده جائزچې ددغورقاصانوددذکرحلقوته ورشي[1].

(۲۴):شاه عبدالعزيزرحمه الله دمتعددو فتاوو په حواله لېکلي دي چې رقص الصوفيه حرام دی.

مثلاً:فتاوی عالمگیری لېکلي دي چې رقص الصوفيه حرام دی.

«»په مضمرات کې يې لېکلي دي چې گناه ده او حلال گڼونکی يې فاسق دی.

«»په الاختيارکې يې لېکلي دي چې رقص الصوفيه په ټولودينونوکې گناه کبيره ده.

«»په محيط کې يې لېکلي دي چې تغنی تصفيق اواستماع يې حرام ده اومستحل يې کافردی.

«»په اختيارالفتاوی کې يې ورته مکروه ويلي دي.

«»په الفتاوی البيهقيه کې يې ورته حرام ويلي دي اومستحل ته يې کافرويلي دي.

«»په جامع الفتاوی کې فرمايلي دي چې رقص حرام دی اوحلال گڼونکی يې کافردی.

«»په الحماديه کې لېکلي دي چې تغنی په ټولو دينونوکې حرامه ده.

«»په تتارخانيه کې فرمايلي دي چې رقاصان صوفيان دالله جل جلاله پورې دروغ تړي، په کارده چې دښارونوځخه وشړل شي.

(۱):فتاوی ابی السعود صـــ (٤٧٦).

«»په آخر کې يې ليکلي دي چې (**وقال الشيخ ان سبعاً وسبعين نفراً من الفقهاء اتفقوا على تحريم الغناء وبين اسماءهم على التفصيل**)[1].

(۲۲): (**افات البدن من الأعضاء الثمانية ،القلب والسان والاذن واليد والرجل والبطن والفرج والعين وهذه كثيرة جدا،منها الرقص،سواء كان فى الذكر اوقرآءة القرآن اوالتسبيح اوالتهليل وهوالحركة الموزونة والاضطراب من لعب غيرمستثنى من قوله عليه الصلاة والسلام كل لعب حرام الاالرمى والمسابقة والملاعبة لاهله يدخل فيهما مايفعله بعض الصوفية فى زماننا**)[2].

اته(۸)اعضاء دانسان په بدن کې موجود دي.

زړه ،ژبه ،غوږ ، لاس ،پښه ،ګېډه ،فرج او سترګې دهريو أفتونه ييخي زيات دي .

په دغه أفتونو کې رقص دی دذکرپه وخت کې وي او که دقرآن دقرأت په وخت کې وي رقص موزون اومرتب حرکت پورته اوښکته سرغورځولو اوښکته پورته کېدلوته وايې اوضطراب بې وزنه اوبې ترتيبه حرکاتوته وايې.

رقص او اضطراب دواړه په هغه لهواولعب کې داخل دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته حرام ويلي دي (کل لعب حرام الا الرمی ، والمسابقة، والملاعبة لاهله)په رقص او اضطراب کې زمونږدزمانې دصوفيانو افعال داخل دي.

(۲۶)-(**فيخاف عليهم امر عظيم )وهوالكفرعندالمصنف رحمه الله وصريح الكفرعندغيره كشيخ الاسلام الكيلانى رحمه الله والبزازى رحمه الله وابن كمال باشا رحمه الله لانه انكارالاجماع كماسيأتى اه**[3].

دمصنف په نيز دذکراوحلقوپه وخت کې په دغو رقص کونکوباندې ديوغټ کارويره ده چې کفردی.

بلکې بعضې علماء ورته ښکاره کافران وايې لکه شيخ الاسلام ګيلانی ، امام بزازی صاحب دفتاوی بزازيه اوابن کمال باشا .

---

(۱):فتاوی عزيزی صـ (٦٦) فارسی.

(۲):البريقة ج ۲ صـــ (۱۳۳).

(۳):البريقة ج۲ صـ (۱۳۳).

**(٢٧): وعن بعض المؤلفين كالشيخ ابراهيم الحلبی رحمه الله تعالی قال بلغنی عن بعض من انكرت عليه الرقص انه قال بعد ما غاب عنی لاينكرون علی شارب الخمر وينكرون علينا.**
**قال وقد كان هذا اشد من ذاك لان شاربها يعتقد حرمة الخمر فربما يستغفر ويتوب وفاعل ذاك يعتقد كونه عبادةً فلا يستغفر بل يتباهی ويرجو من الخلق المنزلة والتعظيم اه**[1].

حضرت امام ابراهيم حلبی حنفی رحمه الله فرمايلي دي چې په بعضو رقاصانو صوفيانومې ردوکړو نوهغه وويل چې شراب خوروته څه نه وايې اوپه مونږ ردکوي.

امام حلبی رحمه الله فرمايلي دي چې دغه په حلقوکې رقص کونکي دشراب خورو څخه بدتردي ځکه چې شراب خواره خپل کارگناه گڼي ډيرځله به استغفاروکړي اودغه په حلقوکې گډيدونکي خپله گډاعبادت گڼي توبه نه اوباسي اودخلکو څخه عزت اومرتبه هم غواړي.

**(٢٨): وقال الطرطوشی رحمه الله حين سئل عن مذهب الصوفية اما الرقص والتواجد، فاوّل من احدثه اصحاب السامری، اسمه موسی بن ظفر وكان منافقالما اتخذ لهم عجلاً جسداً له خوارٌ قاموا يرقصون عليه ويتواجدون فرحاً به،، فالرقص دين الكفار وعباد العجل وقال فی التتارخانية وهذا دليل علی حرمة الرقص علی مذهب الحنفية رحمه الله اه**[2].

دعلامه طرطوشی رحمه الله څخه دصوفيانودمذهب په باره کې پوښتنه وشوه هغه ورته وفرمايل چې رقص اوتواجد اول سامری دنياته راوړی دی کله يې چې ورته خوسی جوړکړو نودسامری مريدانورقص اوتواجدشروع کړو نورقص دکافرانواوگاوپرستانودين دی.

په فتاوی تاتارخانيه کې دي چې همدغه دليل دی لپاره دحراموالی درقص په حلقوکې.

---

(١): البريقة ج٢ صـ١٣٣

(٢): البريقة ج٢ صـ ((١٣٤)).

**(۲۹): وفی الذخیرة انه کبیرة وقال الامام البزازی رحمه الله فی فتاواه قال القرطبی رحمه الله ان هذا الغناء وضرب القضیب والرقص حرام بالاجماع عند مالك رحمه الله وابی حنیفة رحمه الله والشافعی رحمه الله واحمد رحمه الله وسید الطائفة احمد النسوی رحمه الله صرّح بحرمته ورأیت فتاوی شیخ الاسلام جلال الملة والدین الکیلانی رحمه الله ان مستحل هذا الرقص کافر اه**[1].

ذخیرة الفتاوی لیکلي دي چې په حلقو کې سرونه غورځول او ګډېدل ګناه کبیره ده.

او امام بزازی رحمه الله په خپله فتاوی کې د قرطبی څخه رانقل کړي دي چې غزلې، سندرې ویل، شپیلۍ وهل او رقص د څلورو امامانو په نیز حرام دی.

حضرت احمد نسوی (چې ډېرو کراماتو خاوندؤ) فرمایلي دي چې د صوفیانو رقص حرام دی او جلال الدین ګیلانی رحمه الله فرمایلي دي چې څوک چې په دغو حلقو کې رقص ته جائز وایې هغه کافر دی.

**(۳۰): وعن السهروردی رحمه الله وهو عن ابی عباس السقایا رحمه الله یقول تطوف الشیاطین عراة باطراف قوم یشتغلون بالسماع والرقص ویلعبون بینهم وینفخون فی افواههم فیتواجدون اه**[2].

امام سهروردی د ابو العباس السقایا څخه رانقل کړي دي چې شیطانان ځانونه بربنډ کړي، او بیا د دغو خلکو څخه ګېرچاپېره تاویږي چې حلقې کوي او سرونه غورځوي ځانونه خوزوي شیطانان د دوی څخه بربنډ تاوېږي او د دوی په مابین کې لوبې کوي او چې شیطانان د دوی په خوله کې پوکی وکړي نو دوی تواجد شروع کړي او ځانونه غورځوي راغورځوي.

**(۳۱): وعن الامام الرازی رحمه الله تعالی انهم یرقصون رقص الفجار وینهقون کالحمار، ویظنون انهم علی طریق الابرار بل هم اضلّ من الکفار**[3].

---

(۱):البریقة ج۲ صـ (۱۳٤).

(۲):البریقة ج۲ صــ (۱۳۷).

(۳):البریقة ج۲ صـ (۱۲۷).

امام رازی رحمه الله فرمايلي دي چې دغه خلک چې په حلقوکې دفاجرانوپه شان سرونه اواندامونه غورځوي دخروپه شان رمباړې وهي اوداګمان هم لري چې مونږدنېکانواو د اولياوو په لار برابريو نودغه کسان دکافرانوڅخه هم سخت ګمراهان دي (ځکه چې دبزرګي په نوم خلک ګمراه کوي).

**(۳۲): وعن الامام المحبوبی رحمه عن امام الائمة ابی حنيفة رحمه الله لاتجوز الصلاة فی موضع رقص فيه حتی طهر اويخرج ترابه:** امام محبوبی رحمه الله دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله څخه رانقل کړي دي چې په کوم ځای چې رقص اوحلقه شوي وي په هغه ځای کې لمونځ نه دی روا ترڅوچې په اوبوونځل شوی نه وي اوددغه ځای خاوره ويستل شوي نه وي، البريقه ص ۱۳۷.

**(۳۳): وقالت الحنابلة لايصلی خلفه ولاتقبل شهادته ولاحکمه وقالت الحنفية رحمه الله الحصير التی يرقص عليها لايصلی عليها حتی تغسل والارض التی يرقص عليها لايصلی عليها حتی يحفر ترابها» والله اعلم**[1].

حنابله وو فرمايلي دي چې درقص والاوو پسې لمونځ مه کوئ.

اوددغه رقص والاوو شاهدي ،قضاء اوحکم نه قبلېږي.

احنافوفرمايلي دي چې په هغه پوځکي (بوريا)چې رقص وربانډې شوی وي لمونځ نه کېږي ترڅوچې وينځل شوی نه وي اوپه هغه ځمکه چې رقص الصوفيه وربانډې شوی وي لمونځ مه کوئ ترڅوچې مووينځلي نه وي اودهغې ځمکې خاوره موغورځولې نه وي.

**(۳۴): من له انصاف وديانة واستقامة طبع اذا رأی رقص بعض صوفية زماننا،ای فی ديارناعيانا،وفی الديارالأخرسمعاً بالشهرة بل بالتواتر فی المساجد والاذکار بالحان ونغمات**

---

(۱):البريقة ج۲ صـ(۱۳۷).

**مختلطابهم المرد جمع الامرد واهل الاهواء من جهال العوام والمبتدعة الطغام ای الارزال لایعرفون الطهارة والقرآن والحلال والحرام بل لایعرفون الایمان والاسلام اه.**
**ان هؤلآء اتخذودینهم لهوا ولعبا اه**[1].

څوک چې انصاف ،دیانت اومستقیم طبیعت لري چې کله په مساجدوکې اوذکرپه حلقوکې دبعضوصوفیانورقص وګوري اویایې په تواترسره واوري چې سرونه اوزګونه غورځوي، ښکته اوپورته کېږي اولغړزني(بې ږیرې هلکان)ورسره خلط اویوځای وي جاهل عوام اورزیل بدعتیان ورسره خلط اویوځای وي دغوکسانو داسلام دین څخه لعو اولعب جوړکړی دی.
داخلک په اودس نه پوهېږي ،په قران نه پوهېږي حلال اوحرام نه پېژني ایمان او اسلام نه پېژني.
(۳۵):علامه عینی الحنفی لیکلي دي چې (**ولااعتبارلماابتدعته الجهلة من الصوفية فی ذلك فانك اذاتحققت اقوالهم فی ذلك ورأیت افعالهم وقفت علی آثارالرندقة منهم، وبالله المستعان**)[2].

دغوبې علمه اوجاهله صوفیانوچې کوم بدعات راپیداکړي دي هیڅ اعتبار نه لري که ته په غورسره ددوی خبره واورې اوددوی په کارونوستاعلم راشي نو ته به پوه شې چې په دوی کې نښې اوعلامې دزندیقانو شته.
(۳۶):علامه قرطبی رحمه الله لیکلي دي چې:(**مذهب الصوفية بطالة وجهالة وضلالة وماالاسلام الاكتاب الله وسنة رسول الله واماالرقص والتواجد فاول من احدثه اصحاب السامری لما اتخذهم عجلاجسدا له خوار قاموا يرقصون حواليه ويتواجدون فهودين الكفار**

(۱):البریقة ج ۲ صـ(۱۳۷).
(۲): الطهارة والقرآن.

وعباد العجل واما لقضيب فاول من اتخذه الزنادقة ليشغلوا به المسلمين عن كتاب الله تعالى وانما كان يجلس النبى صلى الله عليه وسلم مع اصحابه كأنما على رؤسهم الطير من الوقار. فينبغي للسلطان ونوّابه ان يمنعهم من الحضور فى المساجد وغيرها ولا يحل لاحد يؤمن بالله واليوم الأخران يحضر معهم ولا يعنيهم على باطلهم ،وهذا مذهب مالك وابى حنيفة والشافعى واحمد بن حنبل وغيرهم من ائمة المسلمين رحمهم الله تعالى وبالله التوفيق انتهى[١].

علامه قرطبى رحمه الله ليكلي دي چې مذهب دصوفيه وو سخت باطل ،جهالت او گمراهى ده.

اسلام دالله تعالى كتاب اودنبى عليه السلام سنت دى.

دغه په حلقو كې سرونه غورځول، ښكته پورته كېدل ،اورقص الصوفيه سامرى دنياته راوړى دى.

كله چې يې ورته خوسى (عجل)جوړكړونودسامرى مريدانو تواجداورقص شروع كړو.

نورقص الصوفيه دكافرانو اوگاو پرستانودين دى.

اوشپيلۍ غږول دزنديقانوايجاد دى چې مسلمانان داسلام اودقرآن څخه راگرځوي.

بادشاه اودقدرت والاوو ته په كارده چې داخلك دمسجدونو څخه منعه كړي اوهرڅوك چې په الله تعالى اوآخرت ايمان لري هغوى ته نارواده چې دغودرقص والاوو مجلس ته حاضرشي اوكومك ورسره وكړي اودا دامام مالك،امام ابو حنيفه،امام شافعى اودامام احمدرحمهم الله مذهب دى.

---

(١):قرطبي سورة طه ايت نمبر (٩٣).

**(۳۷):عن حصین بن عبدالرحمن قال قلت لاسماء بنت ابی بکرکیف کان أصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم عند قرآءة القرآن؟**
**قالت کانوکما ذکرهم الله. أوکما وصفهم عزوجل تدمع عیونهم وتقشعرجلودهم، فقلت لها:ان ههنا رجالااذا قرء علی احدهم القرآن غشی علیه،فقالت : اعوذبالله من الشیطن الرجیم[1].**

حضرت حصین رحمه الله فرمایلي دي چې ماحضرت اسماء رضی الله عنها ته وفرمایل چې دنبی علیه السلام صحابه کرامورضوان الله علیهم اجمعین به دقرآن دقرأت په وخت کې په کوم حال وو ؟

حضرت اسماءرضی الله عنها ورته وفرمایل چې داسې به وو لکه څرنګه چې الله تعالی ذکرکړی دی یاالله تعالی بیان کړی دی چې دسترګو څخه یې اوښکې روانې وې اوپوستکی یې زیګه شي.

نوماورته وویل چې دلته داسې خلک دي چې قرآن وربانديږ ولوستل شي نوبې هوشي وربانديږ راشي حضرت اسماء رضی الله عنها وفرمایل چې اعوذبالله من الشیطن الرجیم (یعنې داشیطاني اثردی).

**(۳۸):عن عمران بن عبدالعزیزقال:سمعت محمدبن سیرین وسئل عن من یستمع القرآن فیصعق،فقال:میعادمابیننا وبینهم أن یجلسوعلی حائط فیقرأعلیهم القرآن من اوله الی آخره ان سقطوفهم کمایقولون[2].**

دمحمدابن سیرین څخه دهغه خلکوپه باره کې پوښتنه وشوه چې قرآن واوري نووغورځیږي یعنې جذب شي نومحمدبن سیرین رحمه الله جواب ورکړو چې دغه کسان دې په یواوچت دیوال کینول شي اوبیادې ورته داول څخه تراخره

(۱):تلبیس ابلیس صـ۲۲۰ التفسیرمن سنن سعیدبن منصورمحققاج۲ صـــ ۳۳۳ نورهم ډېرسندونه لري.
(۲):تلبیس ابلیس صـــ (۲۲۲).

پورې قرآن تلاوت کړی شي نوکه چېرته دديوال په سرجذب شونو بيا رشتياوايې.

**(۳۹): ولقدحدثنی بعض المشائخ عن الغزالی انه قال الرقص حماقة بين الكتفين لاتزول الابالتعب**[۱].

په حلقوکې غورځېدل راغورځېدل داوګوپه مابين کې حماقت دی نه زايلېږي مګرپه ستړيوالي.

(۴۰):مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله عنوان لګولی دی په نوم د(مروجه سماع اورقص کی حرمت)[۲].

(۴۱):حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله ليکلي دي چې نن صبادسماع شرائط نشته بلکې دنن صبامروجه سماع اورقص بې له شکه چې سراسرضرر دی اودباطنی تربيت سره منافی دی دداسې سماع څخه دعروج فکربالکل بې معنی دی[۳].

(۴۲):الشيخ ابوالحسن علی بن عثمان الهجويری داتاصاحب رحمه الله ليکلي دي چې مادابوالعباس الشقانی رحمه الله څخه واورېدل چې فرمايل يې چې زه دسماع په يومجلس کې ناست وم نوشيطانان مې بربنډ ولېدل چې ددوی څخه ګېرچاپيره تاويدلواوددوی په مخکې يې لوبې کولې اوپه دغو (صوفيانور قاصانو) کې پوکې کول نوپه دې باندې به فقيران په وجدکې راغلل، په دې

(۱):تلبيس ابليس صـ (۲۲٦).

(۲):التکشف صـ (٦۱۷).

(۳):مکتوبات صـ ۷٦۲ دفتراول حصه پنجم مکتوب (۲۷۵).

باندې صرف هغه څوک پوهېږي چې دکامل نظرخاوندوي اودشيطانانوپه چلونوپوهېږي[1].

همدارنګه علامه هجويرى رحمه الله عنوان لګولى دى (رقص اوددې متعلقات) بيايې فرمايلي دي چې په دې باندې ځان پوهول په کاردي چې په شريعت اوطريقت کې درقص لپاره هېڅ اصل نشته ځکه چې په دې باندې ټول عقلاء متفق دي چې رقص لهوه دى اودلهوى تعريف په مشائخو کې هېچانه دى کړى اوپه دې کې يې غلونه ده کړې.

وروسته يې لېکلي دي چې خلاصه داده چې رقص عقلاً اوشرعاً خراب عمل دى وروسته فرمايې چې رقص ته جائزويونکى کافردى[2].

حضرت مجدد الف ثانى فرمايلى دى چې:(**وعمل صوفيه درحل و حرمت سند نيست همين بس نيست که ما ايشانرا معذورداريم وملامت نه کنيم ومرايشان رابحق سبحانه تعالى مفوض داريم اين جا قول امام ابى حنيفه وامام ابويوسف وامام محمد معتبراست نه عمل ابى بکرشبلى وابى حسن نورى صوفيا نخام اين وقت عمل پيرآن خود رابهانه ساخته سرودورقص رادين وملت خود رفته اند،وطاعتوعبادت ساخته اوليك الذين اتخذودينهم لهوا ولعباً وازروايت سابق معلوم شده است کسى که فعل حرام را مستحسن.**

دانداز زمره اهل اسلام مى برايد ومرتد ميگرددپس خيال بايد کرد که تعليم مجلس سماع ورقص نمودن بلکه ازا اطاعت و عبادت دانستن چه شناعت دارد)[3].

---

(١):الصاعقة المحرقة صـــ(٤٠).

(٢):کشف المحجوب صـــ (٥٦٢)

(٣):کشف المحجوب صـــ (٥٦٢)

په حل اوپه حرمت کې دصوفیه کرامو عمل حجت نه دی ایا داکافی نده چې مونږ دوی معذور وګڼو اوملامته یی نه کړواودوی الله تعالی ته وسپارو ؟ دلته دامام ابوحنیفه امام ابویوسف اوامام محمدرحمهم الله قول معتبر دی، دحضرت ابوبکر شبلی رحمه الله اودحضرت ابوالحسن نوری رحمه الله قول ته اعتبار نه شته نن صبا بعضو خامو کچه صو فیانو دخپلو پیرانوعمل بهانه کړی دی اورقص اوسرود ئې ځانته دین اوملت جوړ کړی دی، اوداطریقه یې عبادت اوطاعت جوړ کړی دی داهغه خلک دي چې دخپل دین څخه یې لهو لعب جوړ کړی دی، اود مخکني روایت څخه معلومه شوه چې کوم شخص چې حرام فعل بنه وګڼي هغه داسلام دډلې څخه خارجیږي اومرتد ګرځي نو فکر کوئ چې دسماع اودرقص دمجلس تعلیم ورکول اودېته عبادت ویل څومره بدي لري.

السماع الشرعی

نبی علیه السلام ،صحابه کرامو اوسلفو به چې قران یاوعظ واوریدلویابه یی دالله تعالی ذکر وکړونو لاندې حالات به ورباندې راتلل:دایمان قوت (په اعتبار دکیفت سره زیادت).

ویره: الله تعالی فرمایلی دی چی: **الذین اذاذکرالله وجلت قلوبهم واذاتلیت علیهم ایاته زادتهم ایمانا.**

خوشحالیدل: الله فرمایلی دی چی: **فاماالذین آمنوافزادتهم ایمان وهم یستبشرون.**

دپوستکی زیګ کیدل: **تقشعرمنه جلودالذین یخشون ربهم.**

اوښکی روانیدل: **تری اعینهم تفیض من الدمع**

**وایضاً قرء علیه عبدالله بن مسعودرضی الله عنه سوره النساءحتی بلغ ,,فکیف اذاجئنا من کل امة بشهیدوجئنابك علی هؤلاء شهیدآ ,,دمعت عینارسول الله صلی الله علیه وسلم**

سجده باندی پریوتل: **یخرون للاذقان سجدا**

سکوت او استماع: **واذصرفنا الیك نفرا من الجن یستمعون فلما حضروه قالوا انصتوا**

بغیر له چیغو ژړا: **فی الصحیح: انه صلی الله علیه وسلم کان اذا صلی وقرء سمع له ازیز کآزیز المرجل.**

تسبیح

سؤال

تعوذ

**عن حذیفة رضی الله عنه انه صلی معه لیلة فقرأ فافتتح البقرة... کلما مر بآیة فیها تسبیح سبح، واذا مر بآیة فیها سؤال سأل واذا مر بآیة فیها عذاب تعوذ**

یو ایت بیا لوستل: **انه علیه السلام قام لیلة بقوله تعالی: فان تعذبهم فانهم عبادك وان تغفر لهم فانك انت العزیز الحکیم،، فما زال یکررها حتی الصبح ثم قرآها فی صلوة الصبح**

بی هوشی: **وسمع الشافعی رحمه الله: هذا یوم لا ینطقون ولا یوذن لهم فیعتذرون فغشی علیه**

**وسمع فضیل بن عیاض قارئا یقرء یوم یقوم الناس لرب العلمین فسقط مغشیا علیه**

بی اختیاره چیغه په صحیح روایت کی ژړا: **وسمع عمر رضی الله عنه رجلا یقول: ان عذاب ربك لواقع ما له من دافع. فصاح صیحه. والصحیح انه بکی**

کله دبی هوشی څخه وروسته وفات کیدل: **وروی عن زراره بن اوفی وکان من خیار التابعین وکان یؤم الناس بالرقه-فقرأ:: فاذانقر فی الناقور فذالك یومئذ یوم عسیر. فصعق ومات فی محرابه.**

دادسلفو حالات وو.

دوی کې نه چا په خپل اختیار سره تیونه اواوګې خوزولې. نه چا منډې رامنډې وهلې، نه چا سرونه غورزول راغورزول،نه څوک ښکته پورته غورزېدل راغو رزېدل، نه چا زګونه کول، نه چارقص کولو، نه چا په امردانو ځانونه غورزول، اونه دجاهل پیر ددستمال اشارې وې ،اونه داکیفیات دائم وي.

فایده:بعضی وائی چی په اجیاء العلوم کی ئی رقص ته جایزویلی دی حلانکی زمونږ دمذهب کتابونه شته نو دبل مذهب کتاب ته څه ضرورت دی؟ همدارنګه احیاءالعلوم دموضوعاتو مجموعه ده همدارنګه چی یوشی دایرشی په مابین دسنت او بدعت کي هغه به متروکولی شی یا دایرشی په مابین دکفر او بااحت کی نو کفر طرفته به ئی ترجیح وی ځان تری ساتل پکار دی۱۲.

دریمه مسئله

ذکربالجهر تعبداًبدعت دی عندالاحناف

(ا)فایده:ذکر بالجهر نشاطاًجایز دی،کله دیو مقرردیوې عجیبې جملې په وخت کې یادښکلي قراءت داورېدلو په وخت کې په اوچت آواز خلک سبحان الله ووایې یادطبیعت جوړولو لپاره.

(۲):لدفع الوسواس والخواطرهم ذکر بالجهر جایز دی.

(۳):**ذکر بالجهر تعلیماً وعلاجاًهم جایز دی، دبعضو سلاسلو صوفیه کرام خصوصاً دچشتیه شریفه والاتعلیماًاوعلاجاًذکربالجهرکوي.**

(۴):**ذکربالجهراعلاناًهم** جایز دی ،لکه په اذن ،تلبیه وغیره که.

(۵):حضرت عمر رضی الله عنه دذکربالجهر لپاره حکمت داسې بیان کړی وو چې(**اطردالشیطان واوقظ الوسنان**).

**(۶): علامه ظفر احمد العثمانی فرمایلی دیچی (ان المراد بقول ابی حنیفه رحمه الله ان الجهر بالتکبیر بدعة ما کان فیه تعبد، ولادلیل فی الحدیث ان الصحابة رضی الله عنهم جهروا به تعبدا الاحتمال انهم جهروا به للنشاط وارهاب العدو)** [۱].

**نوذکر بالجهر د مجاهد لپاره ارهاباً للعدو هم جایز دی.**

(۷): په مجاهدینو کښې دجذبې دراپیداکولو لپاره هم جایزدی لکه دخنداق دکنښتلو په وخت کې وو دمسجددتعمیر په وخت کې دنبی علیه السلام څخه جهر ثابت دی.

خلاصه داچې: نشاطاً،تعلیماً،علاجاودفعاً للوسواس ،همدارنګه اعلاناً واظهاراً، همدارنګه ارهاباً للعدو، همدارنګه ایقاظاً ذکربالجهر جایز دی.

**(اذالم ئوذللنایمین ولم یشوش علی المصلین ولم یکن الجهر مفرطا).**

**اوذکر بالجهر تعبداًوثواباً**بدعت دی، **(بان یعتقد الثواب فی الجهر ویعده عبادتاً)**چې جهر عبادت اوثواب وګڼې، نوبیاذکربالجهر بدعت دی [۲].

سیفیان بریلویان چې میلادونو اوعرسونو ته روان وي نودبس یا دبل ګاډي په چت ناست وي چې بازار اودخلکو ګڼې ګونې ته ورسیږي نو ذکر بالجهر شروع کړي،اوچې دګڼې ګوڼې څخه ووزي،نوبیا غلي شي،نو ددوی ذکر بالجهر یوازې تعبداً نه دی بلکې په دغه بدعت کې ریاء هم کوي

(۲):فایده:ذکر په څلور قسمه دی:

اول:فرض،لکه لمونځ.

دوهم:واجب، لکه دلوی اختر تکبیرات.

---

(۱):اعلاء السنن ج۸ص(۱۲۵).

(۲):نصب الخیام ص ۲۵٤ دمولانا عبدالعلی دیوبندی رحمه الله ،اوحکم الذکر بالجهر، ص٦۷ص۱۹۷دمولانا سرفراز خان صفدر رحمه الله.

دريم :سنت،لکه اذان ،اقامت ،تلبيه.

څلورم:مستحب، لکه په عامو حالاتو کې په ژبه يا په زړه دالله تعاليیادول.
تسبيحات تهليلات وغيره وظايف کول .

په اولو درى واړه قسمه ذکرونو کې شريعت صراحتاً دجهريادااخفا حکم کړى دى،په څلورم قسم کې جهر تعبدا دامام ابو حنيفه رحمه الله په نيز بدعت دى.

دلائل (ا): الله تعالى فرمايلی دى چی:(**ادعواربكم تضرعاوخفيه**).

خپل رب په پټه اوعاجزۍ سره رابلئ، امام ابو حنيفه رحمه الله دذکر بالجهر په بدعتوالى ددې ايت څخه استدلال کړيدى،لکه څرنګه چې علامه الشيخ ابراهيم الحلبى الحنفى رحمه الله ليکلي دي چې :(**قال ابوحنيفه رحمه الله : ليس كلامنا فى مطلق الذكر فانه امر مرغوب فيه فى كل الاحيان بل فى الجهر به وهوبدعة لقوله تعالى ادعواربكم تضرعا وخفية الاما استثناه الشرع**)(١).

امام ابو حنيفه رحمه ا لله فرمايلي دي چې :زمونږ خبره په مطلق ذکر کې نه ده، ځکه چې مطلق ذکر په هر وخت کې بهتر عمل دى بلکې زمونږ خبره په ذکر بالجهر کې ده، ذکربالجهربدعت دى،ځکه چې الله تعالى فرمايلى دي چې (رابلئ رب خپل په عاجزۍ اوپه پټه).

(٢):قاضى ثناء الله پانى پتى رحمه الله ددې ايت په تشريح کې فرمايلي دي چې :(**ثم اجمع العلماء على ان الذكر سرا هو الافضل والجهر بالذكر بدعة الا فى مواضع مخصوصة مست الحاجة فيها الى الجهر كالاذان والاقامة وتكبيرات التشريق وتكبيرات الانتقال فى الصلوة للامام والتسبيح للمقتدى اذاناب نائبة والتلبية فى الحج ونحوذالك**)(٢).

---

(١):غنية المستملى ص ٥٣١،كبيرى ص ٥٧٥،بدائع ج١ ص (١٩٦).

(٢):تفسير مظهرى ج ٣ ص(٤٠٨).

په دې دعلماوو اجماع ده چې ذکر په پټه بهتر دی،او ذکر بالجهر بدعت دی مګر په هغو خاصو ځایونو کې بدعت نه دی، چې هلته جهرته ضرورت وي لکه اذان ،اقامت ، تکبیرات دتشریق ، دامام لپاره. دانتقال تکبیرونه، اوچې کله ضرورت پیښ شي نو دمقتدي لپاره تسبیح ویل، په حج کی تلبیه اوددې په شان نور ځایونه.

(۳):الله تعالی فرمایلي دي چې :(**واذکر ربك فی نفسك تضرعا وخیفة ودون الجهر من القول بالغدو والاصال ولاتکن من الغافلین**).

اوخپل رب په زړه کې په عاجزۍ اودویرې حالت کښیادوه اوپه داسې اواز چې دجهر څخه کم وی،صبا اوبیګا، اومه کیږه ته دغافلانو څخه.

امام ابوحنیفه رحمه الله ددی ایت څخه هم دذکربالجهر دبدعتوالی لپاره استدلال کړی دی .

ابوحنیفه ثانی ابن نجیم المصری الحنفی رحمه الله لیکلی دی چی:**فقال ابوحنیفه رحمه الله رفع الصوت بالذکر بدعة ویخالف الامر من قوله تعالی واذکر ربك فی نفسك تضرعا وخیفه ودون الجهر من القول. فیقتصر علی مورد الشرع.** [۱]

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایلی دی چی ذکر بالجهر بدعت دی اودالله تعالی ددی ارشاد څخه مخالف دی چی: واذکر ربک فی نفسک تضرعا وخیفة الخ.

ابوالبرکات عبدالله ابن احمد النسفی رحمه الله لیکلي دي چې:(**واذکر ربك فی نفسك هوعام فی الاذکار من قراءت القرءان والدعاء والتسبیح والتهلیل وغیرذالك**).

داایت عام دیټولواذکاروته دقران قراءت وي، دعاوي اوکه تسبیح اوتهلیل وي، داټول په پټه لوستل پکاردي.

(۱):البحرالرایق ، ج ۱ ص (۱۵۹).

(۳):شاه محمد اسحق رحمه الله لیکی دی چې :(سوال هفتاد پنجم ذکر جهر درشرع جایز است یا گناه کدام گناه؟).

جواب: ذکر جهر درمذهب حنفیه بدعت است مگر جاییکی درآن ذکر ذکرجهر آمده مثل اذان وغیره.

درآن بدعت نیست. و ماسوای آن بدعت است –(**قال فی فتح القدیر والاصل فی الاذکار الاخفاء والجهر بدعة**) ...**وانچی دربعضی احادیث ذکرجهرثابت شدبغیر مواضع مقرربناء برتعلیم است**[1].

پنځه اویایم سوال: ایا ذکربالجهر جایزدی اوکه ناجایز اوکه گناه ؟ که گناه وی نو کوم قسم گناه ده؟

جواب دادی چی: ذکربالجهر په حنفی مذهب کی بدعت دی مگرپه هغه ځای کې په کوم ځای کې ذکر بالجهر راغلی وي لکه اذان وغیره، نوپه دې کې اوازاوچتول بدعت نه دی اوددې څخه ماسوی په نوروځایونو کی بدعت دی،په فتح القدیر کې راغلي دي چې اصل په اذکاروکې اخفاء ده اوجهر بدعت دی ،،، اوپه بعضوکومو احادیثو کې چې ددغوځایونو څخه علاوه ذکر بالجهر راغلی دی نو هغه په تعلیم ورحمل دي.

(۳):دحضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه څخه روایت دی چې : (**لماغزارسول الله صلی الله علیه وسلم خیبراوقال لماتوجه رسول الله علیه وسلم اشرف الناس علی واد فرفعوا اصواتهم بالتکبیر الله اکبر- الله اکبرفقال رسول الله صلی الله علیه وسلم اربعوا علی انفسکم انکم لاتدعون آصم ولاغایبا انکم تدعون سمیعاقریباوهومعکم**)[2].

کله چې نبی علیه السلام دخیبر غزوې ته ووتلو اویایې وفرمایل چې کله چی نبی علیه السلام متوجې شو نوخلک یومیدان ته ورسېدل پس په اوچت اوازیې الله اکبر الله اکبر اوازونه شروع کړل نوددې په اورېدلوسره نبی علیه السلام وفرمایل چی: په خپلوځانونو نرمي وکړئ بې شکه چې

---

(۱):مآة مسایل ص(۹۵).

(۲):الحدیث . صحیح البخاری ج۲ص (۶۰۵).

تاسو کوڼ او غایب نه رابلئ بلکې داسې ذات رابلئ چې قریب او اوریدونکی دی او هغه ستاسی سره دی.

علامه عینی رحمه الله ددی حدیث په تشریح کې فرمایلي دي چې: (**لان حاصل المعنى فيه انه صلى الله عليه وسلم كره رفع الصوت بالذكر والدعاء**)[1].

ځکه چې په دې کې حاصل د معنا دادی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په اوچت اواز ذکر او دعا دواړه مکروه ګڼلي دي.

(۴): **ولابى حنيفه رحمه الله ان رفع الصوت بالتكبير بدعة فى الاصل لانه ذكر والسنة فى الاذكار المخافة لقوله تعالى ادعوا ربكم تضرعا وخيفة**[2].

دامام صاحب په نیز ذکر بالجهر بدعت دی.

دلمونځ څخه بعدذکربالجهر مکروه او بدعت دی

(۵): **لان رفع الاصوات فى ادبار الصلوات خلاف المعهود فلا يثبت الا باليقين واليقين فيما اتفق عليه كبار الصحابه.**[3]

**واذا كبروبعد الصلوة على اثر صلوة فانه مكروه وانه بدعة.**[4]

بعضې خلک د سلام د ګرزولو څخه وروسته ذکر بالجهر شروع کړي، دغه عمل بدعت دی.

دلمونځ څخه وروسته په اوچت اواز ذکر د اسلام د معلوموا حکامو څخه مخالف کاردی، مکروه او بدعت عمل دی،او حکم نه ثابتیږي مګر په یقین سره او یقیني حکم هغه وي چې دلویو ، لویو صحابه کرامو نه ثابت وي په مشکوة (ج ۱ ص ۸۸) کښې حدیث دی عبد الله بن عباس رض فرمایلی دی چي مابه د نبی کریم ص د لمونځ ختمیدل په الله اکبر پیژندل ، انتهی علامه عینی رحمه الله ددی حدیث په تشریح کی فرمایلی دی چي استدل به بعض السلف على استحباب رفع الصوت بعض السلف على استحباب رفع الصوت التكبير والذكر عقب المكتوبة وممن استحبه من المتاخرين ابن حزم وقال ابن بطال اصحاب المذاهب المتبعة وغيرهم متفقون على عدم استحباب رفع الصوت بالتكبير والذكر حاشا ابن حزم وحمل

---

(۱):عمدة القارى ج۱٤ص(۲٤٤).

(۲):بدايع ج۱ ص(۱۹٦).

(۳):مبسوط للسرخسى ج۲ص(٤۳).

(٤):فتاوى هنديه ج٥ص(۳۱۹).

الشافعی هذا الحدیث علی انه جهر لیعلمهم صفة الذکرلاانه کان دائما عمدة القاری ج ۶ ص ۱۲۶) بعضو سلفوچی په هغوی کښی ابن حزم رحمه الله هم دی ددی حدیث له وجه له لمونځ څخه وروسته په اوچت اوازتکبیراو ذکرته مستحب ویلی دی او ابن بطال رحمه الله فرمایلی دی چی دکومو مذاهبو پیروی چی کیږی، (احناف مالکیه، شافعیه، حنابله) ټول پدی متفق دی چی دلمونځ څخه وروسته ذکر بالجهراو په اوچت اواز تکبیر مستحب نه دی او امام شافعی رح فرمایلی دی چی نبی کریم ص دلمونځ څخه وروسته کله ناکله دتعلیم لپاره په اوچت اواز الله اکبر ویلی دی ددی لپاره چي صحابه کرام طریقه دذکر یاده کړی داسی نده چی همیشه ئی په زوره الله اکبر ویلی دی علامه ساعاتی رحمه الله فرمایلی دی چی وهو محمول علی انه فعل ذلک لتعلیم الناس الذکرفقط وغیرذلک کان یسربه بلوغ الامانی (ج ۴ ص ۷۱) یعنی نبی علیه السلام داذکر بالجهرتعلیما کړی دی علامه کشمیری رحمه الله لیکلی دی چی تمسک بظاهره ابن حزم وذهب الی سنیة الجهربالتکبیر دبرالصلوة وانکرها الجمهور، فیض الباری ج (۱ ص ۳۱۵) ابن حزم رح ددی حدیث دظاهرمطابق دلمانځه څخه وروسته جهر بالکتبیرته سنت ویلی دی لکن جمهورو ددی څخه انکار کړی دی ملاعلی القاری ددی حدیث په تشریح کی ډیر توجیهات لیکلی دی بیائی لیکلی دی چی: وقیل ذلک فی ایام التشریق بمنی وهذا اوفق لمذهب الحنفیة فی کراهتهم الجهر بالذکر فی عداما ورد ددی څخه په منی کی تکبیرات التشریق مراد دی او داتوجیه داحنافو دمذهب سره ډیره موافقه ده ځکه چی هغوی به غیرمنصوصو ځایونو کی ذکر بالجهر مکروه ګڼی ۱۲.

**(۶):لان الجهر بالتکبیر بدعة فکان الاخذ بالاقل اولی احتیاطا.** [(۱)]

تکبیر (ذکر) بالجهر بدعت دی.

تنبیه: اولی په معنا دواجب سره په فقهه کی ډیر راغلی دی.

**(۷):وفی الفطر المختار من مذهبه انه لایجهر** [(۲)] .

---

(۱):تبیین الحقایق زیلعی ج۱ ص(۲۲۷).

(۵):تبیین الحقایق زیلعی ج۱ ص(۲۲۷).

**فقال ابوحنيفه رحمه الله رفع الصوت بالذكر بدعة**[1].

په وړوکي اختر کې چې مسلمانان عيدګاه ته روان وي نوذکربالجهر دې نه کوي،امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايلي دي چې ذکربالجهر بدعت دی.

(٨): **رفع الصوت بذكراوقراءت والصياح خلف الجنازة اه لماروى البيهقى ان الصحابة رضى الله عنهم كرهوا رفع الصوت عند الجنازة وعند القتال وعند الذكر اه. فحرام يجب انكاره اهـ**[2].

اواز اوچتول دذکر،دقراءت اوجنازې پسې دتللو په وخت کې بداوخراب عمل دی، صحابه کرامو داعمل مکروه ګڼلو.

(٩): **رفع الصوت بالذكر بدعة فيقتصر على مود الشرع**[3].

ذکربالجهربدعت دی.

(١٠): **ولايكبريوم الفطر يعنى جهرا فى قول ابى حنيفه رحمه الله وهل يكبرفى الاسواق فى الايام العشر قال الفقيه ابوجعفر رحمه الله سمعت ان مشايخنا رحمهم الله قالوا يرون ذالك بدعة**[4].

دوړوکي اختر په ورځ تکبير(ذکر)بالجهردامام صاحب په مذهب ممنوع دی، اودلوی اخترپه لسو ورځو کې په بازارونوکې په اوچت اوازتکبيرونه ويل بدعت دی.

ردالمحتار فرمايلی دی چی ويلی شي لکن قاضی خان بالاتفاق له اصحابو الترجيح دی.

---

(١):فتح القدير ج٢ص(٤١).

(٢):الفقه الاسلامى وادلته ج٢ص(٥١٧).

(٣):شاميه ج١ص(٥٥٨).

(٤):شاميه ج١ص(٥٥٨).

(۱۱):دحضرت ابوهريره رضى الله عنه اودحضرت على رضى الله عنه په احاديثوكې دقيامت تقريباً پنځلسى علامې ذكر شوي دي،يوه پكې داهم ده چې:(**وظهرت الاصوات فى المساجد**)[۱].

ددې حديث په تشريح كې ملاعلى القارى رحمه الله ليكلي دي چې(وقدنص بعض علماءنا بان رفع الصوت فى المسجد ولوبالذكر حرام )[۲].

زمونږ بعضو علماوو په صراحت سره فرمايلي دي چې په مسجد كې اواز اوچتول حرام دي اگر كه دذكر اوازوي.

(۱۲):**فان رفع الصوت بالتكبير تعبدا بدعة.**[۳] **دعبادت په نيت.**

په تكبير اواز اوچتول بدعت دى.

(۱۳):**قال العينى قوله لايكبر اى جهرا وانما قيدنا بالجهر لان التكبير خير موضوع لاخفاء فى جوازه بصفة الاخفاء وجه الاول ان رفع الصوت بالذكر بدعة فيقتصر على مور دالشرع**[٤].

علامه عينى رحمه الله فرمايلي دي چې خفيه ذكربهترين عمل دى، اوذكر بالجهر بدعت دى.

(۱۳):**وفى فتاوى القاضى رفع الصوت بالذكر حرام قدصح عن ابن مسعود رضى الله عنه:انه سمع قوما اجتمعوا فى مسجد يهللون ويصلون عليه الصلوة والسلام جهرا فراح اليهم**

(۱):مشكوة ج۲ص(٤٧٠).

(۲):مرقات ج۱۰ص۱۷۱ طبع ملتان.

(۳):اعلاء السنن ج ۸ ص(۱۲۲).

(٤):اوجزالمسالک ج ۸ ص(١٤).

**فقال ما عهدنا ذالك على عهده عليه السلام وما اراكم الا مبتدعين فما زال يذكر ذالك حتى اخرجهم عن المسجد**[1].

د قاضی صاحب په فتاوی کې دي چې ذکر بالجهر حرام دی، او د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه صحیح ثابته ده چی هغه واورېدل چې یو څه خلک په مسجد کې راجمعه شوي دي او په اوچت اواز سره لااله الاالله وایې اودرود شریف لولي نو عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ورغلو. اوورته ویې فرمایل چی دا (ذکربالجهر تعبدا) دنبی علیه السلام په زمانه کې نه وو،اوزما په گمان تاسو بدعت یانیې بیاییایې ورته همداخبره کوله تردې چې دمسجد څخه یې وویستل.

(۱۴):دنبی علیه السلام دصحابه وو رضی الله عنهم په باره کی رائی چی (**اقلهم تكلفا**)[2].

ملاعلی القاری رحمه الله ددې په تشریح کې فرمایلي دي چې:( **ولايتحلقون للاذكار والصلواة برفع الصوت في المساجد وفي بيوتهم**)[3].

صحابه کرامو رضی الله عنهم به په کورونو اومسجدونو کې په اوچت اواز دذکر اودرود لپاره حلقې نه جوړولې.

---

(۱):بزازیه علی هامش الهندیه ج۳ص(۳۷۵).

(۲):مشکوة ج ۱ص(۲۳).

(۳):مرقات ج.۱. ص (۲۱٤).

دجنازې پسې شاته ذکرکول بدعت دی

(۱):علامه کاسانی رحمه الله فرمايلي دي:(**ويطيل الصمت اذا تبع الجنازة،ويكره رفع الصوت بالذكر**)(۱).

دجنازې پسې دتللوپه وخت کې به خاموش اوسې اوپه دې وخت کې په اوچت آواز ذکرمکروه دی.

(۲):علامه ابن نجيم رحمه الله ليکلي دی چې:(**وينبغي لمن تبع جنازة ان يطيل الصمت ويكره رفع الصوت بالذكر وقرأءة القرآن وغيرهما في الجنازة والكراهة فيها كراهة تحريم**)(۲).

دجنازې پسې شاته ذکربالجهرحرام دی.

خلورمه مسئله

عقيده دعلم الغيب

**سيفيان بريلويان دفقهى حنفى په خلاف غيرالله ته هم علم الغيب ثابتوي .**

داهل السنة والجماعة احنافو دعقيدې وضاحت :دلته څلورشيان جدا جدا دي:

**( ۱):دنبى كريم صلى الله عليه وسلم علم(۲)غيب (۳) اخبار بالغيب(۴) علم الغيب:**

(ا):دنبی صلی الله علیه وسلم علم:درسول الله صلى الله عليه وسلم په علم کې اختلاف نشته دی .

درسول الله صلى الله عليه وسلم علم دټول مخلوق دعلم څخه زيات ؤ نبى عليه السلام فرمايلي دي چې (اوتيت علم الأولين والأخرين).

(۱):بدائع ج۱ ص (۳۳۰).

(۲):البحرالرائق ج۲ ص(۲۰۷).

دنبی علیه السلام دعلم دلائل دعلم الغیب دلایل نه شي کېدلی.

(۲) غیب:دغیب تعریف داسې دی چې **(مالایدرکه الحواس ولاتقتضیه بداهة العقل)**

بیضاوی تحت قوله تعالی یؤمنون بالغیب آه.

تشریح یې داده:چې اسباب دعلم درې دي(۱)خبرصادق(۲)حواس (۳)عقل:

بیا په عقل باندې کله دیو معلوم ادراک بداهةً کېږي او کله استدلالاً

نو غیب دېته وایې چې په حواسو او په عقل باندې یې ادراک بداهةً نه کېږي.

یعنې دکوم معلوم ادراک چې دحواسو په ذریعه کېږي هغه غیب نه دی

او همدارنګه دکوم معلوم ادراک چې په عقل بداهتاً کېږي هغه غیب نه دی.

پاتې شو هغه معلوم چې دخبرصادق په ذریعه یې ادراک کېږي لکه : دبرزخ او دقیامت حالات.

همدارنګه هغه معلوم چې دعقل په ذریعه یې استدلالاً ادراک کېږي لکه :نظری قضایا ،نو دا ودواړه غیب دي.

یو بل قسم غیب هم شته چې نه یې دخبرصادق په ذریعه ادراک کېږي او نه دعقل په ذریعه استدلالاً لکه ددیوال شاته څه شی دی؟

دانه په خبرصادق کې راغلی دی او نه په عقل استدلالاً معلومېږي همدارنګه دمرګ نیټه وغیره...

حاصل داچې غیب په دوه قسمه دی (۱):ماتحت الاسباب چې دخبرصادق په ذریعه یایې دعقل په ذریعه استدلالا ادراک ممکن وي.

دوهم : مافوق الاسباب چې دخبرصادق اوعقل په ذريعه يې ادراک ممکن نه وي.

قاضی بیضاوی رحمه الله فرمايلي دي چې غيب په دوه قسمه دی(۱) :(**ما ننصب عليه دليل)يعنه ماتحت الاسباب كما تقدم.**

دوهم : (**مالم ينصب عليه دليل**)يعنې مافوق الاسباب .

اول قسم ته اضافی غيب وايې دوهم قسم ته حقيقی غيب وايې.

حقيقی غيب فقط دوهم قسم دی اول قسم ته غيب ويل په اعتبار دماكان سره دی.

صاحب دفتاوی بزازيه فرمايلي دي چې (وماعلم الله لخيارعباده بالوحی او الالهام الحق لم يبق بعد الاعلام غيبا )[1].

الله جل جلاله چې بنده ګانوته دوحی یاداِلهام په ذريعه دكوموغيبو اطلاع وركړې ده نو داطلاع څخه بعد داغيب غيب نه پاتې كيږي.

همدارنګه حافظ ابن حجررحمه الله فرمايلي دي (فان لبعض الغيوب اسبابا قد استدل بها عليه لكنه ليس بحقيقی)[2].

يعنې دوحی ، الهام وغيره.... اسبابوپه وجه چې كوم غيب منكشف شي داحقيقی غيوب نه دي .

يعنې ماتحت الاسباب غيوب حقيقی غيوب نه دي .

(۱):بزازيه ج ٤ صفحه (۱۱۹).

(۲):فتح الباری صـــ (٤٩۱).

اخباربالغیب(۳):په ماتحت الاسبابو یعنې په اضافی غیوبو چې الله تعالی چاته علم ورکړي نوپه شریعت کې دهغې څخه په اخبار بالغیب ، ایمان بالغیب او اطلاع بالغیب باندې تعبیر کېږي .

علامه سید شریف الجرجانی رحمه الله فرمایلي دي چې (**وانمالم یجزالاطلاق فی غیره تعالی لانه یتبادر منه تعلق علم به ابتداءً فیکون مناقضاواما اذاقید وقیل اعلمه الله تعالی اواطلعه علیه فلامحذورفیه**)[1] .

علم الغیب(۴):په مافوق الاسباب غیوبو باندې علم ته علم الغیب وایې اودا دالله جل جلاله خاص صفت دی.

خلاصه داچې علم الغیب دېته وایې چې اسباب دعلم به نه لري یعنې ذاتي به وي ،یعنې مافوق الاسباب به وي.

اومافوق الاسباب یوائې دالله جل جلاله علم دی اودمخلوق علم ماتحت الاسباب دی.

نودهیڅ مخلوق علم ، علم الغیب نه شي کېدلی .

په علم الغیب کې درې خبرې ضروري دي(۱)ذاتی والی (۲)ازلی والی (۳) کلی والی.

وروسته به دابن عابدین په حواله راشي چې علم غیب به ذاتی ،ازلی اوکلی وي ، اوداسې علم فقط دالله تعالی دی.

په حنفی فقهه کې علم الغیب فقط ذاتی
یعنې مافوق الاسباب ته وایې

(۱):السیدشریف برهامش کشاف ج ۱ صـــ (۱۲۸).

(۱):علامه الوسی رحمه الله فرمايلي دي (**فالعلم به لكونه بواسطة الاسباب لايكون من علم الغيب**)[۲].

يعنې علم الغيب ذاتی وي د اسبابو (**وحی،الهام،كشف،عقل اوحواسو**)په ذريعه به نه وي.

(۲):(**هومالم يقم عليه دليل ولااطلع عليه مخلوق**)[۱].

په علم الغيب كې دليل او اطلاع نه وي يعنې ذاتی او مافوق الاسباب وي.

(۳):(**ماغاب عن المشاهد ولم يقم عليه دليل**)[۲].

علم غيب ذاتی وي دمشاهدې اودلايلو واسطه په كې نه وي يعنې دوحی ، الهام وغيره سبب په كې نه وي.

(۴):(**والتحقيق ان الغيب ماغاب عن الحواس والعلم الضروری والعلم الاستدلالی وقدنطق القرآن بنفی علمه عمن سواه تعالی فمن ادعی انه يعلمه فقط كفرومن صدق المدعی كفرواماماعلم بحاسة اوضرورة اودليل فليس بغيب**)[۳].

په علم الغيب كې هېڅ سبب نه وي نه حواس اونه علم ضروری اونه علم استدلالی اوماتحت الاسباب چې دحواسوپه ذريعه په يوشي علم راشي اويادعقل په ذريعه بداهةً په يوشي علم راشی يادبل دليل په وجه لكه دوحی ، الهام ياكشف په ذريعه په يوشي علم راشي نود اغيب نه دی اوچاچې دعوه

---

(۲):روح المعانی ج ۲۰ صـــ (۲۹۹).

(۱):تفسير نسفی ج ۲ صـــ (٦۱۷).

(۲):تفسيرمظهری ج ۷ صـــ (۱۲۷).

(۳):نبراس صـــ (۳٤۳).

(٤):بزازيه ج ٤ صـ (۱۱۹).

دعلم غيب وکړه هغه هم کافردی اوچاچې دمدعی دعلم الغيب تصديق وکړو هغه هم کافردی.

**(۵):(وما اعلم الله لخيار عباده بالوحی اوالالهام الحق لم يبق بعد الاعلام غيبا).**

کوم غيب چې دوحی يادالهام په ذريعه يې الله تعالی چاته علم ورکړي نوداطلاع څخه وروسته هغه غيب غيب نه پاتې کېږي ،نوپه هغې باندې علم، علم الغيب نه دی.

**(۶):(ان علم الانبياء والاولياء هوباعلام من الله تعالی لهم وعلمنا بذلك هو باعلامهم لنا**

**وهذا غيرعلم الله الذی تفرد به وهو صفة من صفاته القديمة الازلية الدايمة .... فلايعلم الغيب احد الاهو وماسواه ان علموا جزئيات منه فهو باعلامه واطلاعه وحينئذ لايطلق انهم يعلمون الغيب اذلاصفة لهم يقتدرون بها علی الاستقلال)**[1].

فوائد (۱):اطلاع بالغيب عين علم غيب نه وي ځکه چې اطلاع بالغيب انبياوو او اولياوو ته هم شته اومونږ ته هم شته انبياوو او اولياوو ته الله تعالی اطلاع ورکړې ده اومونږ ته اولياوو او انبياوو اطلاع راکړې ده حالانکې علم الغيب زمونږ سره نشته ،نوکه په غيبو داطلاع څخه وروسته علم ،علم الغيب وي ،نوپه کار ده چې مونږ ته هم علم الغيب ثابت شي.

(۲): غيرالله ته دټولو غيبو اطلاع نه ده شوې بلکې دبعضو جزئياتو اطلاع ورته شوې ده.

(۳):علم الغيب ذاتی ، ازلی ،کلي اومحيط وي.

---

(۱):رسائل ابن عابدين ج۲ صـــ (۴۵۹ ).

چې داطلاع واسطه په کې نه وي بلکې مستقل وي نوهمدا د(ذاتی) معناده او د(**ازلية**) لفظ خوصراحتاً راغلی دی او د(**الدايمة**)څخه هم کلية او احاطه رافهمېږي او د (**ماسواه وان علم جزيات**)څخه هم کليت او احاطت رافهمېږي .

لهذا علم الغيب ذاتی، ازلی ،کلي اومحيط وي .

(٨): (**فان لبعض الغيوب اسباباً قد استدل بها عليه لكنه ليس بحقيقی**)[٢].

دوحی،الهام، کشف، حواسو، عقل وغيره ذرائعو په وجه چې کوم غيب منکشف کېږی هغه حقيقی غيب نه دی .

داحنافوپه نيزغيرالله ته علم الغيب ثابتول کفر دی:**حقيقی غيب** مافوق الاسباب ذاتی ، ازلي اوکلي وي لهذاغيرالله ته دعلم الغيب عقيده کفرده .

ملاعلی قاری رحمه الله فرمايلي دي چې (**فالعلم بالغيب أمر تفرد به سبحانه وتعالى ولاسبيل للعباد اليه الا بأعلام منه والهام بطريق المعجزة اوالكرامة اوالارشاد بالامارات فيما يمكن فيه ،ذلك ولهذا ذكر فی الفتاوی ان قول القائل عندرؤية هالة القمرای دائرته(يكون مطرٌ)مدعيا علم الغيب لابعلامة الكفر**)[١].

(٢): علامه ابن عابدين رحمه الله فرمايلی دي چې (**قلت وحاصله ان دعوى علم الغيب معارضة لنص القرآن فيكفربها**).

ردالمحتارباب المرتد مطلب فی دعوی علم الغيب.

---

(٢):فتح الباری صـــ (٤٩١).

(١):شرح الفقهة الاكبر صـــ ١٥١ تصديق الكاهن فيما يخبر.

(۳): (رجل تزوج بشهادة الله ورسوله كان باطلا لقوله عليه السلام لانكاح الابشهود وكل نكاح يكون بشهادة الله ورسوله معظمهم جعلوا ذلك كفرا لانه يعتقدان الرسول صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب وهوكفر)[۲].

(۴):په خلاصة الفتاوى ج ۲ صـ ۱۵ كې رائي چې (رجل تزوج امرأة ولم يحضره شهود فقال، خدا ورسول يا فرشته ان راه وكواه كردم بطل النكاح وكفر الناكح لاعتقاد أن الرسول صلى الله عليه وسلم والملئكة تعلم الغيب).

(۵): (لوتزوج بشهادة الله ورسوله صلى الله عليه وسلم لاينعقد ويكفر الاعتقاده ان النبى صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب)[۱].

(۶):(تزوجها بشهادة الله ورسوله صلى الله عليه وسلم لاينعقد ويخاف عليه الكفر لانه يوهم أن النبى صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب)[۲].

(۷):اگر کسی بدون شهود گفت که خدا ورسول راگواه کردم یافرشته راگواه کردم کافر شود[۳].

(۸): (ذكر الحنفية فى فروعهم بالتكفير باعتقادان النبى صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب لمعارضة قوله تعالى، قل لايعلم من فى السموات والارض الغيب الاالله)[۴].

(۹): (زوج امرأة بشهادة الله ورسوله هل يكفر؟ ففيه الفاظ الكفر)[۵].

---

(۲):قاضى خان على هامش الهندية باب مايكون اسلامامن الكفر ومالايكون ج ۱ صـــ (۳۳٤).

(۱):البحرالرائق ج ۳ صـــ ۱۵۵).

(۲):بزازيه ج ٤ صـــ (۱۱۹).

(۳):مالابدمنه صـــ (۱۲۹).

(٤):المسامره صـــ (۱۵۸).

(٥):خلاصة الفتاوى ج ۲ صـــ (۱۵).

(۱۰):مفتی محمد فرید رحمه الله لیکلي دي چې دعلم غیب دوه معناګانې دي .
(۱):یوعلم مافوق الاسباب یعنې بغیر داسبابوڅخه علم لرل اوداشرعی اواصلاحی معناده .
(۲):داچې علم په هغه شیانوچې دحواسواوعقل نه اوچت وي او دېته غیب لغوی وایې.
علم غیب په اولنی معناسره دالله جل جلاله سره مختص دی ځکه چې دممکن دټولوکارونو ذات اوصفات دالله تعالی ورکړه ده ، **ومابکم من نعمة فمن الله.**
اودوهم قسم انبیاء علیهم السلام ته ورکړل شوی دی خوپه قدردضرورت نه داچې ټول په ټوله الخ[۱] .
(۱۱ ): **لوتزوج امرأة بشهادة الله ورسوله لايجوزالنكاح وعن قاسم الصغاروهوكفرمحض لانه اعتقدان رسول الله يعلم الغيب وهذاكفر**(۲).
(۱۲):قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمایلي دي چې (همچنان نصارا عیسی راپسرخداومشرکان عرب ملائکه رادختران خدا گفتند وعلم غیب به انها مسلم داشتند کافرشدند )[۳] .
(۱۳):علامه نسفی رحمه الله لیکلي دي چې (**رأى المنصورفی منامه صورة ملك الموت وسأله عن مدة عمره فاشاربأصابعه الخمس فعبرها المعبرون بخمس سنوات وبخمس اشهروبخمسة أيام، فقال ابوحنيفة رحمه الله هواشارة الى هذالاية فان العلوم الخمس لايعلمها الاالله تعالى**)[۴] .

---

(۱):فتاوی فریدیه ج ۱ صـــ (۸٦).
(۲):مجمع الانهر شرح ملتقی الابحر ج ۱ صـــ ٤٧٢ بیروت.
(۳):مالابدمنه صـــ (۱۱، ۱۲).
(٤):مدارک ج ۳ صـــ (۷۲۳).

خلیفه منصورپه خوب کې ملک الموت لیدلی وو اودخپل عمرپه باره کې یې ترینه پوښتنه کړې وه ملک الموت ورته په خپلوپنځه ګوتو سره اشاره کړې وه نوبیاپه تعبیرکوونکوکې چا تعبیرپه پنځه کالونوکوه چاپه پنځه میاشتو اوچاپه پنځوورځوامام ابوحنیفه رحمه الله داسې تعبیروکړه چې په دې کې هغو پنځو غیبونو ته اشاره ده چې دالله تعالی څخه بغیرېې هیچاته معلومات نشته الله جل جلاله فرمایلی دي (**ان الله عنده علم الساعة**).

چلینج

دحنفی فقهی په سلګونو عباراتوکې صراحتاً راغلی دي چې علم غیب دالله تعالی خاص صفت دی اوغیرالله ته دعلم الغیب عقیدې والاکافردی سیفیان بریلویان دې صرف دوه حوالې دحنفی فقهی څخه داسې پیش کړي چې غیر الله ته دعلم الغیب څخه منکرکافردی.

پنځمه مسئله

دحاضر اوناظر

سیفیان بریلویان دنوروبریلویانو په شان دحنفی فقهی په مقابله کې نبی علیه السلام ته حاضراوناظروایې.

(۱):دسیفیانوبریلویانو مصنف اعظم مولانا غلام یاسین صاحب محمدی سیفی نقشبندی چشتی ماتریدی، مستقل کتاب لیکلی دی په نوم د(*حاضروناظر محبوب*) *یعنے ہمارانبی صلی اللہ علیہ وسلم حاضروناضرہے.*

*مطبوع مکتبہ محمدیہ سیفیہ راوی ریان حسینی ٹاون جی ٹی روڈلاہور.*

(۲):دسیفانوبریلویانو استادالعلماء شیخ الحدیث مولانا غلام فریدهزاروی سیفی رضوی یوکتاب لیکلی دی په نوم د معروضات الحاذق فی خدمة

مولاناصادق ددې کتاب په (۱۲) صفحه کې يې ليکلي دي (بلکہ میں مسمّٰی غلام فرید سیفی ہزاروی نے ایک موقع پر سرکار مبارک سے دوران گفتگو پوچھا کے کیاحضور صلی ا ﷲ علیہ وسلم حاضر وناظر ہے؟
توآپ نے تصدیق فرماتی ہے کہ ہا بلکل حضور صلی اللہ علیہ وسلم حاضر وناضر ہے)انتهى.

يعنې مايوه ورځ دپيرسيف الرحمان صاحب څخه پوښتنه وکړه چې آيا حضور صلى الله عليه وسلم حاضراوناظردى؟

نوپيرسيف الرحمان صاحب راته وويلې چې هو نبى عليه السلام حاضر او ناظردى.

(۳):پيرسيف الرحمان صاحب وايې چې زه په ټولوفتاوى جاتوکې داحمد رضاخان بريلوى صاحب سره موافق يم[۱].

اودبريلونوغزالى دوران مولوى عمراچهروى ليکلي دي چې (حضور صلی اللہ علیہ وسلم زوجین کے جفت ہونی کے وقت بہی حاضر وناضر ہوتی ہے)[۲].

يعنې خزه اوخاوند چې سره يوځاى کېږي په دغه وخت کې هم (معاذالله )نبى عليه السلام حاضروناظردى.

حالانکې په حنفى فقهه کې داسې دي چې (**من قال ارواح المشائخ حاضرة تعلم يكفر**).

**الفتاوى بزازية على هامش الهندية، الفصل الثانى فى مايتعلق بالله**).

(۱):انواررضا صـــ ۲۵، ٤٠ وغيره...

(۲):مقياس حنفيت صـــ(۲۸۲).

دبریلویانو مناظراعظم مولانا نظام الدین الملتانی داحنافو مسلک داسې رانقل کړی دی چې (اگرکسی اعتقاد دارد که ارواح مشائخ حاضرآند هر چیزمیداند اوچی حکم دارد؟

جواب: اوکافراست فی البزازیة من قال ارواح المشائخ حاضرون یعلمون یکفر(۳).

سوال: که یوسړی داعقیده ولري چې دمشائخو ارواح په هرځای کې حاضراوناظردي اوپه هرشي خبردي دده په باره کې دشریعت حکم څه دی؟

جواب دادی: چې داسې شخص کافردی اوپه فتاوی بزازیه کې راغلي دي چې کوم سړی داووايې چې دمشائخوروحونه حاضردي اوزمونږپه حالاتوپوهيږي هغه کافردی،

همدارنګه يې لیکلي دي چې په هروخت په هرځای کې حاضراوناظر دخداوند کریم لم یلد ولم یولد خاصه ده.

اوهغه لایزال ذات لیس کمثله شئ دی اوپه داسې صفاتو ذاتیه وو کې دکوم نبی یادولی شریکول یاداسې ګڼل اوپه دې باندې عقیده لرل ښکاره کفردی.

لکه څرنګه چې مولانا عبدالحی رحمه الله په خپله فتاوی اول جلد صـ ۳۲۸ کې داسې رانقل کړي دي چې (وتزوج بلاشهود وقال خداورسول وفرشته گان راگواه کردم یکفرلانه اعتقدان الرسول والملک یعلمان الغیب ونیزدربزازیه آست قال علماءنا من قال ان ارواح المشائخ حاضرة تعلم یکفر(۱).

(۳):انوارشریعت ج ۱ صـــ ۳۹ سنی دارالاشاعت فیصل آباد.

(۱):انوارشریعت جلد۲ صـ (۲۳۹).

ددې حوالې څخه معلومه شوه چې په حنفي مذهب کې په هروخت اوهرځاى کې حاضراوناظرفقط الله جل جلاله دى.

اوکوم مخلوق په هروخت اوپه هرځاى کې حاضراوناظرګڼل دکفرعقيده ده.

اودسيفيانوبريلويانوعقيده داده چې دښځې اودخاوند ديوځاى کېدو په وخت کې هم (معاذالله)رسول الله صلى الله عليه وسلم حاضراوناظردى[٢].

پدغه وخت کې دشرم اوحياله وجې ملائکې جداکېږي لکن دابدبختان پدغه وخت کې نبى عليه السلام حاضراوناظرګڼي.

مولوى عمراچهروى ددې خپلې ګنده عقېدې لپاره دحديث څخه استدلال کړى دى چې دحضرت ابوطلحه رضى الله عنه ماشوم بچى مريض ؤ عين په هغه شپه وفات شوچې په کومه شپه چې ابوطلحه دسفرڅخه کورته راغلو ام سليم رضى الله عنها خبره پټه کړه چې هسې نه چې د ابوطلحه رضى الله عنه ټوله شپه په غم تېره شي دخاوند سره يې بلکل دعامو حالاتوپه شان ګفتګووکړه.

حضرت ابوطلحه رضى الله عنه دشپې خپلې بى بى سره جماع وکړه سهارورته ام سليم رضى الله عنها وفرمايل چې مادرته دشپې حال ونه ويلې چې تاسو خفه نه شئ ستاسو ماشوم بچى وفات شوى دى دتجهيزاوتکفين بندوبست يې وکړه.

ابوطلحه رضى الله عنه چې نبى عليه السلام ته واقعه واوروله نونبى عليه السلام دام سليم دصبراودتحمل څخه تعجب وکړواوپه سواليه اندازېې وفرمايل چې (اعرستم الليلة؟)

آياددې دردناکې واقعې څخه بعدتاسوجماع هم وکړه اوبياهم ام سليم حال نه ويلو؟

---

(٢):مقياس حنفيت صـــ(٢٨٢).

ابو طلحه رضی الله عنه و فرمایل چې هو ،انتهی.

دلته په کوم ځای کې راغلي دي چې نبی علیه السلام هلته حاضراو ناظر وو. که زید دعمرو څخه پوښتنه وکړي چې آیاتا دخپلې بی بی سره جماع کړې ده هغه ورته وو ایې چې هو ،نو ددې خودامعنانه ده چې زید هلته حاضراو ناظر وو ویډیو یې جوړه وله.

امام نووی رحمه الله فرمایلي دي چې (**السؤال للتعجب من صنیعها وصبرها وسرورا بحسن رضاها بقضاء الله ثم دعا صلی الله علیه وسلم لهما بالبرکة فی لیلتهما فاستجاب الله**)[1].

دنبی علیه السلام داپوښتنه چې (اعرستم الیلة؟) ددې بی بی دصبر او تحمل څخه دتعجب په بنیاد ده اوپه دې تعجب ؤ چې څومره دالله تعالی په فیصله راضی ده بیا یې ورته دبرکت دوعاوکړه الله تعالی دوعاقبوله کړه.

شپږمه مسئله

په مافوق الاسباب کې دغیرالله څخه

کومکونه غوښتل

غیرالله مشکل کشااوحاجت رواګڼل:سیفیان بریلویان غیر الله ته باذن الله مشکل کشا وایې اووایې چې غیر الله په مافوق الاسباب کې باذن الله مدد کولی شي.

سوال: دادی چې ددوئ په نیزدباذن الله څه مطلب دی؟

جواب:ددوئ په نیزدباذن الله دامعنا ده چې الله تعالی غیرالله ته په مافوق الاسباب کې دمدد کولو قدرت ورکړی دی یعنې الله غیر الله ته داقدرت ورکړی دی چی خلکو ته بچي ورکړي اودخلکو ګناهونه معاف کړي وغیره....

---

(۱):شرح مسلم ج ۲ صـــ۲۰۹

اومافوق الاسباب یو کار کول خلق دی. (**کمافی شرح العقایدفی ذکرالفرق بین الخلق والکسب**)اوغیراللہ ته د خلق الاشیاء صفت ورکول ممکن نه دی بلکې محال دی.

(۲)سوال:یارسول الله ماته بچی راکړه زما ګناهونه معاف کړه ماته مړی راجوندي کړه ماته شفاء راکړه داسې مافوق الاسباب امور دغیر الله نه غوختل څنګه دي؟

الجواب: دا شرک فی الدعاء دی.

سوال :سیفیان وایې چې مونږ دا ځکه وایو چې الله جل جلاله دا قدرت رسول اللہ صلی اللہ علیه وسلم ته معجزتا او اولیاء ته کرامتا ورکړي دي.

جواب:د اشاعره وواو ماتریدیه ووپه نیز دشفاء احیاء اماتت وغیره رجوع داللہ دتکوین او دخلق صفت ته ده نو دسیفیانو دخبرې مطلب داشو چې الله تعالی اولیاء الله ته دخلق الاشیاء قدرت ورکړی دی او اشعریه او ماتریدیه وایې دا محال دی چې الله چاته د خلق الاشیاء صفت ورکړي او محال تحت قدرت الله نه وي.

سوال:بریلیان سیفیان معتزل ( مجوس) وایې چې مونږ خو د اشفاء او احیاء الموتی نسبت غیر اللہ ته کسباً کوو ؟

جواب: ددې داسې مثال دی لکه څوک ووایې چې مونږ بندګانو ته دخلق ا لاشیاء نسبت کسبا کوو حالانکی د اخکاره حماقت اوشرک دی ( ځکه دادواړه نه شي جمع کېدلی). کسب دالاتو او اسبابو سره تعلق لري یعنې کسب ماتحت الاسباب وي(**کمافی شرح العقاید**)او خلق مافوق الاسباب وي.

سوال :(**واذ تخلق من الطين**) سره به څه کوې؟

جواب:معتزله وو او سیفیانو په دې آیت استدلال کړی دی چې ټول بندگان باذن الله د خپلو اعمالو خالقان دي او غلاة متصوفه وو پرې استدلال کړی چې ټول بندگان نه بلکې اولیاء الله باذن الله د اشیاء خلق کولی شي نو دوئ هم معتزله دي په دې مسئله کې مونږ دوئ ته وایو چې هغوئ باذن الله باندې استدلال په خلق الاعمال وکړو نو گمراه شو چې ته غیر الله ته باذن الله د خلق صفت ورکوې نو ته گمراه نه یې؟

سوال:ددوئ باره کې حدیث کې څه راغلي دی.

جواب :د بریلیانو او سیفیانو (معتزله وو) په باره کې ددې عقیدې له وجې راغلي چې دوئ ددې امت مجوس دي ( مشرکان د).

سوال :د (**واذ تخلق من الطين۔۔۔اودبأذن الله**) څه مطلب دی؟

جواب:د معتزله بریلیانو سیفیانو(مجوسو) په نیزیې مطلب دادی چې الله ورته صفت دخلق الاشیاء ورکړی دی دا یې ذاتی صفت نه دی بلکې عطائی طور باندې خلق الاشیاکوي (والعیاذ بالله) او داهل السنةپه نیزتخلق په معنی د صورة جوړولو سره دي(**شرح فقه اکبر**).

او باذن الله مطلب دا نه چې بعطاء الله (چې الله ورته صفت د خلق الاشیاء ورکوي) بلکې په ارادې د الله سره او الله چې د کوم شي اراده وکړي هغه په خپله کوینه داسې چې اراده الله(جل جلاله) وکړي او پیدا کوي یې بل څوک اود باذن الله مطلب دا هم دی چې عیسی علیه السلام به ورته فقط ویل قم باذن الله نه چې په خپل قوت به یې دا کار کوه بلکې قم باذن الله د الله نه دعاء وه او الله به قبلوله.

(۱)؛قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله (المتوفی سنة **۱۲۲۵ ھ**) لیکلي دي چې :مسئله:آن چه جهال می گویند یاشیخ عبدالقادرجیلانی شیئا لله یاخواجه شمس الدین پانی پتی شیئالله جائزنیست شرک وکفراست واگرالهی به حرمت خواجه شمس الدین پانی پتی حاجات من رواکن گوید مضائقه ندارد حق تعالی می فرماید(ان الذین تدعون من دون الله عبادٌ امثالکم سورة اعراف ۱۹۴).

یعنې ازکسائی که شمادعامی خواهید سوای خدا انها بنده گان مانند شما انها راچه قدراست که حاجت کسی برارند ؟

وأگرکسی گوید که این درحق کفارجواب ان است که اعتباربه عموم لفظ است نه خصوص محل )[۱].

جاهلان چې داسې وایې چې یاشیخ عبدالقادرجیلانی شیئاًلله یاداسې وایې چې یاخواجه شمس الدین پانی پتی شیئالله (داستمداداودکومک غوښتلوپه نیت) شرک اوکفردی.

اوتوسل جائزدی چې کومک اوامداد دالله تعالی څخه غواړي اوخواجه شمس الدین ورته وسیله کوې چې یاالله تعالی دخواجه شمس الدین رحمه الله په وسیله اوحرمت زمامشکل حل کړه نوبیاجائزدی .

الله جل جلاله فرمایلي دي چې هغه خلک چې تاسوورڅخه په (مافوق الاسباب کې) کومکونه غواړئ ستاسو په شان بنده گان دي ستاسو مشکلات نه شي حل کولی که څوک ووایې چې دا آیتونه دکافرانوپه باره کې نازل شوي دي نوجواب دادی چې اعتبارعموم دلفظ ته وي خصوص دسبب ته اعتبار نه وي .

(۱):ارشادالطالبین صـــ ٤٧، ٤٨ طبع ایران صـ ۲۹ طبع لاهور.

(۱):حضرت قاضی صاحب داولیاوو په باره کې دګمراه خیالونو والا تعارف داسې کړی دی (وبعضی دراولیاءعصمت وعلم غیب خیال می کند ومی دانند که اولیاء هرچه خواهند همان شود وهرچه نخواهند معدوم گرده وازقبور اولیاء باین خیال مرادات خود طلب می کنند وچون دراولیاء الله ومقربان درگاه که زنده این صفت نمی یابند ازولایت أنها منکر شوند واز فیوض آنها محروم می مانند)[۲].

بعضې داولیاوو په باره کې دمعصوموالی اودعلم الغیب عقیده لري اوداګمان کوي چې اولیاء څه چې وغواړي هغسې کېږي اوچې اولیاء ونه غواړي نه کېږي.

اوپه همدې ګمان داولیاوو دقبرونو څخه مرادونه غواړي اوچې کله هغوی په ژوندیواولیاوو کې داصفت ونه مومی نودهغوی دولایت څخه انکارکوي اودهغوی دفیوضو څخه محروم پاتې کېږي.

(۳):قاضی صاحب مخکې لیکلي دي چې :

مسئله: اگرکسی گوید که خدا ورسول برین عمل گواه اند کافرشود اولیاء قادرنیستند برایجاد معدوم یااعدام موجود پس نسبت کردن ایجاد واعدام واعطاءرزق یا اولاد ونفع بلاومرض وغیرآن بسوئی شان کفراست.

(**قل لااملك لنفسی نفعاً ولاضراً الاماشاءالله**)یعنې بگوای محمدصلی الله علیه وسلم مالک نیستم من برائی خویشتن نفع راونه ضرر رامگرانچه خدا خواهد واگرنسبت بطریق سببیت بود مضائقه ندارد.

که یوکس ووایې چې الله تعالی اورسول صلی الله علیه وسلم په دې عمل شاهدان دي کافر کېږي.

---

(۲):بستان السالکین ترجمه ارشادالطالبین صـــ۱، ۲ وصفحه ۱۲طبع ایران.

اولياء په دې قدرت نه لري چې معدوم موجود کړي ياموجود معدوم کړي نواولياوو ته رزق ورکوونکی ويل ياموجودونکی ويل يامعدومونکی ويل يااولادورکونکی ويل يادمرضونو اومصيبتونووغيره (په مافوق الاسباب امورو کې کومک کونکی ويل)کفردی.

الله تعالی نبی عليه السلام ته فرمايلي دي چې ته ووايه دغو خلکوته چې زه دځان لپاره دګټې يادتاوان درسولوقدرت نه لرم مګرهغه چې الله تعالی وغواړي اوکه دسبب په اعتبارنسبت وشي (چې دنبی عليه السلام په واسطه الله تعالی مددوکړو)نوبياحرج نشته.

(۱):علامه محمد طاهر الحنفی رحمه الله (المتوفی سنه ۹۸۶)ليکلي دي چې: **(منهم من قصد بزيارة قبور الانبياء والصلحاء ان يصل عند قبورهم ويدعو عندها ويسألهم الحوائج وهذا لايجوز عند احد من علماء المسلمين فان العبادة وطلب الحوائج والاستعانة حق الله وحده).**[1]

بعضې ددې لپاره قبرونو ته ځي چې هلته لمونځ اودوعاوکړي اودمړو څخه کومک وغواړي اودادیو مسلمان په نيزهم نده جائزځکه چې عبادت او (په مافوق الاسباب امورو کې کومک غوښتل) يوائې دالله تعالی څخه کيږي.

(۵):علامه الوسی حنفی نقشبندی رحمه الله ليکلي دی چې:**(فقد قلت يوما لرجل يستغيث فی شدة ببعض الأموات وينادی يافلان أغثنی فقلت له: قل ياألله فقد قال سبحانه (واذاسألك عبادی عنی فانی قريب أجيب دعوة الداع اذادعان البقرة ۶، فغضب وبلغنی أنه قال فلان منكر علی الاولياء وسمعت عن بعضهم أنه قال: الولی اسرع اجابة من الله عزوجل وهذا من الكفر بمكان نسأل الله تعالی أن يعصمنا من الزيغ والطغيان**[2].

---

(۱):مجمع بحارالانوار،ج ۲ صـ ۴۹۹طبع حيدآباددکن.

(۲):تفسيرروح المعانی ج ۱ صـ (۲۴۴).

یوه ورځ یو سړي دیو مړي څخه کومک غوښتلو او ویل یې چې ای فلانکیه!!
زمافریاد واوره ماورته وویل چې:یاالله ووایه،(دالله تعالی څخه کومک
وغواړه) ځکه الله تعالی فرمایلي دي چې زمابنده ګان چې زماپه باره کې در
څخه پوښتنه کوي نوزه نږدې یم ددعاکونکودعاقبلوم کله یې چې زماڅخه
وغواړي نوهغه سړی په غوسه شواوزماپه خلاف یې تبلیغات شروع کړل چې
داولیاوو څخه منکردی اودبعضو خلکو څخه خومې داسې واورېدل چې اولیاء
یې دالله تعالی څخه زرقبلوي،الله دې مونږدخویدلودسرکشۍ څخه وساتي.
(۸):حضرت شاولی الله محدث دهلوی رحمه الله (المتوفی سنه
۱۱۷۶ه)لیکلي دي:(**کل من ذهب الی بلدة اجمیراوالی قبرسالارمسعوداوماضاهاها لاجل حاجة یطلبها اثم اثماً اکبرمن القتل والزنا**)[(۱)].
څوک چې اجمیرته لاړو یادسالارمسعودقبرته لاړو اویادکوم بل نبی یادولی
قبرته لاړه لپاره دحاجت چې د(نبی یادولی څخه یې غوښتلونودقتل اودزناڅخه
یې هم سخته ګناه وکړه)
(۹):همدارنګه یې لیکلي دي چې :(**واعلم ان طلب الحوائج من الموتی عالماً بانه سبب لانجاحها کفر یجب الاحترازعنه تحرمه هذه الکلمة والناس الیوم فیه منهمکون**)[(۲)].
دمړوڅخه کومک غوښتل ولګوکه دسبب په مرتبه کې وي هم کفردی دشهادت
کلمه دمړوڅخه کومک غوښتل حراموي اوخلک دمړوڅخه په کومکونو
غوښتلوکې مصروف دي.

---

(۱):تفهیمات الهیه ج ۲ صـ٤٥ طبع حیدرآباددکن.
(۲):لخیرالکثیرصـــ (۱۰۵)

(۱۰): ملاعلي قاري حنفي رحمه الله(المتوفى سنه ۱۰۱۴ هـ) ليکلي دي چې: (**قوله: واذاسألت فسأل الله اى فسأل الله وحده فان خزائن العطايا عنده ومفاتيح المواحب والمزايا بيده وكل نعمة اونقمة دنيوية اواخروية فانها تصل الى العبد اوتندفع عنه برحمته من غيرشائبة غرض ولاذميمة علة لانه الجواد المطلق والغنى الذى لايفتقر فينبغى ان لايرجى الارحمته ولايخشى الانعمته ويلتجأ فى عظائم المهام اليه ويعتمد فى جمهور الامورعليه ولايسأل غيره لان غيره غير قادرعلى العطاء والمنع ودفع الضر وجلب النفع فانهم لايملكون لانفسهم نفعا ولاضراولايملكون موتاولاحيوة ولانشورا**)(۱).

کله چې دې غوښتل کول نو دالله تعالی څخه يې کوه ځکه چې دورکړې خزانې دالله تعالی سره دي اود بخششيانو اوزيادتونو چابيانې دالله تعالی په لاس کې دي اوهرديني اودنيوی نعمت دالله تعالی په رحمت انسان ته رسيږي اوهر دينی اودنيوی عذاب دالله تعالی په رحمت دفع کيږي بغيرله غرض اوله علت څخه ځکه چې الله تعالی کامل جواددی.

اوداسې غنی ذات دی چې نه فقير کيږي نوپه کارده چې يوائې دالله تعالی څخه اميدولرو اويوائې دالله تعالی دعذاب څخه وويريږو اويوائې الله تعالی ته فناء ونيسوپه غټوکارونوکې اودبل چاڅخه کومک ونه غوښتل شي ځکه چې دالله تعالی څخه بغير څوک چاته څه نه شي ورکولی اونه دچاڅخه ضرر دفع کولی شي.

(۱): مرقاة المفاتيح ج ۸ صـــ كتاب الاداب باب التوكل والصبر، رقم الحديث (۵۳۰۲).

(۱۱):شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله لیکلي دي چې:(**ولیس القادر والفاعل والمتصرف الاهو واولیاء الله هم الفانون الهالکون فی فعله تعالی وقدرته وسطوته لافعل لهم ولاقدرة ولاتصرف لاالآن ولاحین کانوا احیاء فی دارالدنیا**)[۲].

قادر اوتصرف کوونکی فقط الله تعالی دی او دالله تعالی اولیاء فناء کېدونکی دي.

اولیاوو نه په ژوندکې قدرت اوتصرف لرلو اونه دوفات څخه وروسته.

(۱۲):شاه عبدالعزیزالدهلوی رحمه الله (المتوفی سنه ۱۲۳۹هـ) لیکلي دي:(اول مدد خواستن چیزدیگراست وعبادت چیزی دیگراست عوام مسلمین برخلاف حکم شروع ازاهل قبور مدد میخواهند وپرستش نمی کنند وبت پرستان مدد هم می خواهند وپرستش هم می کنند پرستش انست که سجده کند یاطواف نمایدیانام اوبطریق تقرب وردساز دیاذبح جانور بنام اوکند یاخود را بنده فلان بگوید وهرکه ازمسلمانان جاهل باهل قبوراین چیزها باعمل ارد فی الفورکافرمی گردد وازمسلمانی می براید.... دوهم انکه بالاستقلال چیزیکه خصوصیت بجانب الهی دارد مثل دادن فرزند یابارش باران یادفع امراض یاطول عمر ومانند این چیزها بانکه دعا وسوال ازجانب الهی درنیت منظور باشد ازمخلوق درخواست نمایند این نوع حرام مطلق بلکه کفراست واز مسلمانان کسی ازاولیاء مذهب خود خواه زنده باشند یامرده این نوع مدد خواهدازدائره اسلام خارج می شود[۱].

---

(۲):لمعات ج ۷ صـــ ۳۹ کتاب الجهاد باب حکم الأسرا.

(۱):فتاوی عزیزی فارسی صـــ ۳۳ سعیدیه کتب خانه پشاور.

عبادت جداشی دی اومددغوښتل جداشی دی عوام دشریعت په خلاف دمړو څخه مددونه غواړي اوعبادت يې نه کوي اوبت پرستان دمړوڅخه مددهم غواړي اوعبادت يې هم کوي دمړو عبادت دادي چې قبرته سجده وکړې یادقبرڅخه طواف وکړې اويايې نوم دتقرب لپاره وظيفه کوې يايې په نوم باندې حيوان ذبح کړې ياځان ته دفلانی بنده ووايې اوهرجاهل مسلمان چې داهل قبورسره داعمل وکړي سمدستي کافرکېږي اودمسلمانی څخه وځي.

دوهم داچې (مافوق الاسباب شيان) بالاستقلال دمخلوق څخه غوښتل حرام بلکې کفردی لکه دمخلوق څخه اولاديابارن یادمرضونو دفع کول یادعمر اوږدولوغوښتل اګرچې په نيت کې يې دالله تعالی څخه غوښتل وي کوم مسلمان چې دخپل مذهب داولياوو څخه مړه وي اوکه ژوندي وي داقسم (مافوق الاسباب )مددوغواړي داسلام ددائرې څخه خارجېږي.

(۱۳):شيخ عبدالغنی نابلسی الحنفی رحمه الله (المتوفی سنه ۱۱۴۳ هـ) لیکلي دي چې :(**لان الخلق کلهم عبید لایملکون لانفسهم نفعا ولاضرافهم لغیرهم اولی ان لایملکوالهم ضراولانفعا**)[1].

مخلوق ټول دالله تعالی بنده ګان دي چې خپل ځان ته نفع اوضرر نه شي رسولی نوبل چاته خوپه طريق اولی نفعه اوضرر نه شي رسولی.

(۱۴):علامه ابن نجیم المصری اوعلامه ابن عابدین شامی رحمهم الله لیکلي دي چې :(**قوله باطل وحرام) لوجوه : منها انهم نذر لمخلوق والنذرللمخلوق لایجوز لانه عبادة والعبادة لاتکون لمخلوق، ومنها انه ان ظن ان المیت یتصرففی الامور دون الله تعالی واعتقاده ذلك کفر**)[2].

(۱):شرح الطریق المحمدیة صـــ ۵۲۳ طبع استانبول.

(۲):البحرالرائق ج ۲ صـــ۳۲۱، ۳۲۲ شامی ج ۲ صـــ ٦٦٠ (کتاب الصوم مطلب فی النذرالذی یقع للاموات).

مخلوق ته نذر لګول نه دي جائز ځکه چې نذر عبادت دی او عبادت د مخلوق نه دی جائز او څوک چې دا عقیده لري چې مړی په امورو کې تصرف کولی شي هغه کافر دی.

اوومه مسئله
مروجه جشن عیدمیلاد
النبی صلی الله علیه وسلم

توضیح: دله درې شیان دي (۱)ذکرولادة النبی صلی الله علیه وسلم(۲)محفل میلادالنبی صلی الله علیه وسلم یاسیرة النبی صلی الله علیه وسلم چې صرف دنبی علیه السلام دصورت اودسیرت دبیانولولپاره تعلیمی اوتبلیغی جلسه جوړه شي اودتخصیص شرعی څخه بغیر ایصال ثواب وشي(۳)مروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم :

اول: ذکرولادة النبی صلی الله علیه وسلم دکال په ټولوورځوکې هره ورځ په مدارسواومساجدوکې کیږي.

هره ورځ په مدارسواومساجدوکې دنبی علیه السلام صورت اوسیرت بیانول همداذکرولادة النبی صلی الله علیه وسلم دی .

دوهم: میلادالنبی صلی الله علیه وسلم یاسیرة النبی صلی الله علیه وسلم چې صرف تبلیغی اوتعلیمی اوبلاتخصیصه ایصال ثواب وي .

داهمالشیخ المحدث عبدالحق الدهلوی رحمه الله ،ملاعلی قاری رحمه الله اوصاحب دفتاوی الکاملیه وغیره لیکلی دی.

ملاعلی قاری رحمه الله فرمایلي دي چې (**بل یکتفی بالتلاوة والاطعام والصدقة وانشادشئ من المدایح النبویة**)[1].

نوټ: د**محفل** میلادالنبی صلی الله علیه وسلم یادسیرة النبی صلی الله علیه وسلم جلسه په هره میاشت اوهره ورځ کې یوبرابرکېدی شي ،دکومې خاصې میاشتې عبادت نه دی.

په ربیع الاول کې نبی علیه السلام پیداشوی دی نوکه ددغې مناسبت له وجې په دې میاشت کې وشي نوهم صحیح ده داتعین عرفی دی.

البته دتعین شرعی عقیده به نه لرې.

دریم: مروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم بدعت دی .

ځکه چې مروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم په ډېرو بدعاتو مشتمل دی.

دمروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم اودعاموتعلیمی اوتبلیغی جلسوپه مابین کې ډېرفرقونه دي.

(۱):عامې تعلیمی اوتبلیغی جلسې دکومې خاصې میاشتې یادکومې خاصې ورځې عبادت نه دی اومروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم ددې ربیع الاول د میاشتې خاص عبادت ګڼل کېږي اودتاریخ الولادة عبادت ګڼل کېږي.

---

(۱):المورد الروی ضمن مجموعة الرسائل صـــ (۳۹۰).

(۲): په عاموتعليمی اوتبليغی جلسوکې هېڅ تخصيص شرعی (**تخصيص الجواز، تخصيص الثواب اوتخصيص کثرة الثواب**) نه وي.

يعنې داعقيده نه وي چې داجلسه په فلان مياشت اوتاريخ جائزده، اوپه بله مياشت اوبل تاريخ جائزنه ده،.

اونه دا عقيده وي چې په فلان مياشت اوپه فلان تاريخ ډېرثواب لري اوپه بله مياشت اوپه بل تاريخ لږثواب لري.

بلکې تعين عرفی په کې کېږي ديو مناسبت له وجې ورته يو تاريخ مقرر کېږي.

اوپه مروجه جشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم کې دتخصيص عقيده وي.

ځوک چې مروجه جشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم ددې مياشتې عبادت ګڼي نوضرور به دربيع الاول په مياشت کې جائزه وي اوپه بله مياشت کې به يې ناجائزه وي يابه دربيع الاول په مياشت کې ثواب لري اوپه بله کې به يې نه لري ،يابه دربيع الاول په مياشت کې زيات ثواب لري اوپه نورومياشتوکې به لږثواب لري .

(۳):په مروجه جشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم کې مقصود دولادت اودفات ورځ لمانځل وي ، اوپه اسلام کې دولادت اودوفات دورځولمانځل نشته .

وګوره معارف القرآن دمفتی شفيع رحمه الله (**تحت قوله تعالی اليوم اکملت لکم دينکم**).

(۴)په مروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم کې دثواب په نیت کوڅې ،کورونه اومساجدپه ګلانو،چراغانواوبلپونوپوښل کېږي، اوعبادت ګڼل کېږي.

(۵):په مروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم کې سیفیان بریلویان قیام کوي[۱].

دپیرسیف الرحمان په باره کې یې لیکلي دي چې (اورهرسال (۱۲)ربیع الاول کومحفل میلادالنبی صلی الله علیه وسلم خودأپنی مسجدوآستانه پرمنائی ه ....اورمحافل کی اختتام پرسلام مع القیام پڑ ھاجاتاھا)

(۶):په مروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم کې جلوس ویستل کېږي.

حاصل داچې مروجه جشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم په بد عاتو مشتمل دی لهذابدعت دی.

مجددالف ثانی رحمه الله فرمایلي دي چې:(بنظرانصاف ببینداګرفرضاً حضرت ایشان (خواجه ما)دراین اوان دردنیا زنده میبودندواین مجلس واجتماع منعقدمیشدأیاباین أمرراضی میشدند واین اجتماع رامی پسندید یانه یقین فقیرأنست که هرګزاین معنی راتجویزنه می فرمودندبلکی انکار مینمودندالخ[۱].

---

(۱):وګوره دسیفیانوکتاب (معروضات الحاذق )لمفتی غلام فرید هزاروی صـ ۱۲.

(۱):مکتوبات ج۱ ص ۲۲ ،حصه ،مکتوب نمبر(۲۷۳).

دانصاف په نظردې وکتل شي که خواجه باقی بالله رحمه الله ژوندی وی اودغه محافل دميلادونوجوړيدلی نوآياخواجه باقی بالله رحمه الله به په دغه کار راضی وی ؟

دفقير(مجددالف ثانی)يقين دادی چې هيڅکله به نه وی راضی ،اوپه دغومحافلودميلادالنبی صلی الله عليه وسلم به يې رداومنع کړی وی.

زمامقصدستاسوخبرول ؤ که دخواجه باقی بالله رحمه الله اولادونه يياهم دميلادالنبی صلی الله عليه وسلم مجلسونه جوړوي، نوزماليپاره ددوی دصحبت دحرمان څخه بله چاره نشته.

(۲): يوه ورځ خواجه حسام الدين رحمه الله حضرت مجدد الف ثانی ته داهل بدعتويواعتراض رانقل کړوچې په مولود خوانۍ کې په ښکلي آواز سره صرف دقرآن په لوستلو اودنعت اومنقبت دقصائدو په لوستلو کې څه حرج دی؟

ممنوع خودادی چې دقرآن کريم په حروفوکې تغيراوتبديل وکړی شي ، اودمقاماتودنغموالتزام وکړی شي، اودالحانوپه طريقه اوازونه وشي،اوکه په داسې طريقومولود ولوستل شي چې په قرآنی کلماتوکې تحريف ونه شي ، اوپه قصائدوکې مخکيني شرائط متحقق نه شي ، اوپه صحيح غرض سره مولودوشي نوپه دې کې څه ممانعت دی؟

نوحضرت مجدد الف ثانی رحمه الله جواب ورکړو :زمامخدومه: زماپه زړه کې داخيال راځي چې ترڅوپورې چې دغه دروازه پوره بنده نه شي بوألهوس نه منعه کيږي ،که لږشانته يې جائزکړو نوهغه زياتيږي مشهوره مقوله ده چې دلږشي څخه زياتيږي[۱] .

(۱):مکتوبات ،دفترسوم مکتوب ۷۲ ج۳ صـــ (۱٤٤۷).

بعضې بریلویان دجل کوي دخواجه حسام الدین رحمه الله اعتراض رانقلوي حالانکې په جواب کې چې مجدد الف ثانی رحمه الله مطلقاتردید کړی دی هغه نه رانقلوي.

(۴):حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله فرمایلي دي چې (وعمل فقیر نیزبرهمین است وهیچ روزی رابرروز دیگر ترجیح نمی دهد تاانکه ترجیح انها ازشارع معلوم نکند کالجمعة ورمضان ونحوهما)[۲].

زماعمل همدادی چې هېڅ ورځې ته په بله ورځ ترجیح نه ورکوم ترڅوچې دشارع څخه ترجیح نه وي معلومه شوي لکه جمعه ،رمضان اونورې ورځې...

(۵):حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمایلي دي چې:

سوال:پختن طعام درأیام ربیع الاول برای خدا، ورسانیدن ثواب آن بروح پرفتوح حضرت سرکار کائنات صلی الله علیه وسلم یاحضرت امام حسین علیه السلام درماه محرم ودیگر ال اطهار سید مختار صحیح است یانه؟

جواب: برای این کار وقت وروز ،تعین نمودن وماهی مقررکردن بدعت است آری اگروقتی بعمل آرند که درآن ثواب زیاده شود مثل ماه رمضان که عمل بنده مؤمن به هفتاد درجه ثواب زیاده دارد مضایقه نیست ومخالفت سنت سید الآنام ومخالفت سنت حرام است پس هرکزروانباشد واگر دلش خواهد مخفی خیرات کند درهر روزیکه باشد تانمود نشود[۱].

(۲):مکتوبات حصه چهارم صــ (٦٧).

(۱):فتاوی عزیزی صـ (۹۳).

سوال:دربیع الاول په میاشت کې دالله تعالی درضالپاره اودنبی علیه السلام دایصال ثواب لپاره یاپه محرم کې دحضرت حسین رضی الله عنه اونورو اهل بیتوته دایصال ثواب لپاره خیرات کول څه حکم لري؟

جواب:ددې خیراتونو لپاره ورځ او وقت معینه کول (تعین شرعی چې په دې میاشت کې دنورو څخه خیرات بهترګڼي)بدعت دی البته په رمضان کې دخیرات ثواب په اویاچنده دنص څخه ثابت دی ، اوچې په کومه میاشت کې دشارع له طرفه ترغیب نه وي ثابت اوشارع دخیرات لپاره کوم وخت نه وي متعین کړی ،نودڅان څخه تخصیصونه اوخیراتونه کول عبث اودسنتو څخه مخالف دي، اودسنتو څخه مخالفت حرام وي.

که دچاړه غواړي نوپټ خیرات دې وکړي په هره ورځ چې وي ترڅوریارانه شي.

(۳):شاه عبدالعزیزرحمه الله په تحفه اثناعشریه کې باب قائم کړی دی(باب یازدهم درخواص مذهب شیعه).

ددې باب لاندې لیکلي دي چې:(نوع پانزدهم امثال متجدده را یک چیز بعینه دانستن و این وهم خیلي بر ضعیف العقلان غلبه دارد حتي که آب دریا و شعله چراغ و آب فواره را اکثر اشخاص یک آب و یک شعله خیال کنند و اکثر شیعه در عادات خود منهمک این خیال اند مثلا روز عاشورا در هر سال که بیاید آنرا روز شهادت حضرت امام حسین گمان برند و احکام ماتم و نوحه و شیون و گریه و زاري و فغان و بي قراري آغاز نهند مثل زنان که هر سال بر میت خود این عمل نمایند حالانکه عقل بالبداهه میداند که زمان امیر سیال غیر قار است هرگز جزء اوثبات و قرار ندارد و اعاده معدوم محال و شهادت حضرت امام در روزي شده بود که این روز ازان روز فاصله هزار و دوصد سال دارد این روز را باان روز

چه اتحاد و کدام مناسبت و روز عید الفطر و عید النحر را برین قیاس نباید کرد که در انجا مایه سرور و شادي سال بسال متجدد است یعني اداء روزه رمضان و اداء حج خانه کعبه که شکر اللنعمه المتجدد سال بسال فرحت و سرور نو پیدا میشود و لهذا اعیاد شرایع برین و هم فاسد نیامده بلکه اکثر عقلا نیز نوروز و مهرجان و امثال این تجددات و تغییرات آسماني را عید گرفته اند که هر سال چیزي نو پیدا میشود و موجب تجدد احکام مي باشد و علي هذا القیاس تعید بعید بابا شجاع الدین و تعید بعید غدیر و امثال ذلک مبني بر همین وهم فاسد است ازینجا معلوم شد که روز نزول آیه «**الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا**» و روز نزول وحي و شب معراج را چرا در شرع عید قرار نداده اند و عید الفطر و عید النحر را قرار داده اند و روز تولد و وفات هیچ نبي را عید نگردانیدند و چرا صوم یوم عاشورا که سال اول بموافقت یهود آنحضرت صلي الله علیه و سلم بجا آورده بودند منسوخ شد درین همه همین سر است که وهم را دخلي نباشد بدون تجدد نعمت حقیقه سرور و فرحت نمودن یا غم و ماتم کردن خلاف عقل خالص از شوایب وهم است[1] .

خلاصه: دیوې ورځې یادیوې میاشتې امثال عین هغه ورځ او عین هغه میاشت ګڼل یو وهم دی چې په ډېرو دضعیفو عقلونو او لاخلکو باندې غالب دی.

دیوې ورځې یادیوې میاشتې مثل عین هغه ورځ او هغه میاشت ګڼل داسې دي لکه ددریاب اوبه چې یو اوبه وګڼې ،حالانکې اوبه رواني دي هرې تېرې شوې اوبه دنورو روانو اوبو څخه جدادي اویا دفوارې اوبه یو اوبه وګڼې ،یادچراغ رڼا یوه رڼا وګڼې ،حالانکې دایوه رڼا نه ده دهرې دقیقې رڼا دبلې دقیقې درڼا

(۱):تحفه اثناعشریه صــ (۳۵۱).

ځخه جدا ده عين نه ده ،همدارنګه زمانه هم سياله ده څوارلس سوه كاله مخكې دمحرم هغه لسم تاريخ چې حضرت حسين رضى الله عنه په كې شهيدشوى وودنورو كلونو دمحرم دلسم تاريخ ځخه جدادى هغه دشهادت ورځ بيانه راځي دسږكال دمحرم لسم تاريخ دحضرت حسين رضى الله عنه دشهادت تاريخ نه دى.

دسږكال دمحرم په لسم خوحضرت حسين رضى الله عنه نه دى شهيد شوى، نودسږكال دمحرم لسم عين څوارلس سوه كاله مخكينى دمحرم لسم نه دى بلكې دهغې مثل دى نوشيعه ګان ځرنګه دسږكال دمحرم لسم تاريخ لمانځي؟ داخودحضرت حسين رضى الله عنه دشهادت ورځ نه ده .

همدارنګه ديوپيغمبردولادت يادوفات ورځ يوه وي مثلا: څوارلس سوه كاله مخكې دربيع الاول په مياشت كې نبى عليه السلام پيداشو ،نوڅوارلس سوه كاله مخكنى ربيع الاول دنوروكلونودربيع الاول ځخه جدادى هغه دولادت ربيع الاول بيانه راځي.

دسږكال ربيع الاول دنبى عليه السلام دولادت مياشت نه ده ،دسږكال په ربيع الاول كې خونبى عليه السلام نه دى پيداشوى ،نوچې دسږكال ربيع الاول عين څوارلس سوه كاله مخكنى ربيع الاول نه دى بلكې دهغې مثل دى اوپه مثل كې نبى عليه السلام نه دى پيداشوى نوځرنګه اهل بدعت دسږكال ربيع الاول لمانځي داخوعين دولادت مياشت نه ده؟بلكې مثل شهرولادة ده.

شيعه ګان امثالودهغه لسم دمحرم ته چې حضرت حسين رضى الله عنه په كې شهيدشوى وو عين دهمغه لسم حكم وركوي اواهل بدعت امثالودهغه ربيع

الاول ته چې نبی علیه السلام په کې پیدا شوی وو عین دهمغه ربیع الاول حکم ورکوي.

دشاه عبدالعزیزرحمه الله په دې عبارت کې ښه سوچ وکړئ چې (روزتو لدووفات هيچ نبی راعيدنگردانيدند الخ).

يعنې شريعت دهيڅ نبی دتولد يادوفات ورځ عيد نه دی جوړ کړی.

فانقيل: چې بيادعيدالفطر اوعيدالاضحی (دوړوکی اولوی اختر)ورځ ولې هر کال راځي؟

نو شاه عبدالعزيز رحمه الله جواب کړی دی چې په وړوکی اولوی اخترکې هر کال متجدد نعمت راځي چې درمضان دروژو اداء اودحج اداءده،نوپه متجددنعمت متجدده خوشحالی اومتجدد عيد جوړيږي.

اودانبياء عليهم السلام ولادت او وفات متجدد نه دی لهذاپه شريعت کې هر کال متجدد عيدوربانديې نه جوړيږي.

(۴):داهل بدعتو جشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم دسيرة النبی صلی الله عليه وسلم دعامو تبليغی اوتعليمی جلسوپه شان تبليغی اوتعليمی جلسه نه ده بلکې اهل بدعت جشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم ددې مياشتې عبادت گڼي .

لهذا داهل بدعتوجشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم دډېرو فقهی قواعدوڅخه مخالف دی مثلا :يوه قاعده (**السنة التركية**)ده.

کوم عبادت چې په خيرالقرون کې يې داعی موجود وي اومانع يې موجود نه وي اوبياهم متروک وي دهغې ترک سنت دی.

وګوره نفحات التنقيح شرح مشكاة المصابيح للشيخ سليم الله خان رحمه الله
(**تحت قوله من احدث فی امرنا هذا ما ليس منه فهورد**).

اودجشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم داعی په خيرالقرون کې موجودوو اومانع يې نه وو موجود بياهم متروک وو ،نوترک يې سنت دی.

بله قاعده اصل په عباداتوکې توقيف دی: اواصل په عاداتوکې اباحت دی حضرت حذيفه رضی الله عنه فرمايلي دي چې (كل عبادة لم يتعبدها اصحاب رسول الله صلی الله عليه وسلم فلاتعبدوها)[1].

صحابه وو چې کوم عبادت نه وي کړی نوتاسويې مه کوئ اوصحابه وو رضوان الله عليهم اجمعين دربيع الاول په مياشت کې دجشن عيدميلادالنبی صلی الله عليه وسلم په نوم عبادت نه دی کړی.

بله قاعده دتعظيم الايام ده: په شريعت کې صرف دهغوورځوتعظيم او لمانځل جائزدي چې لمانځل اوتعظيم يې منصوصي وي حضرت طاوس فرمايلي دي چې (**لاتتخذوشهراعيداولايوماعيدا**)[1].

دځان څخه يوې ورځې يايوې مياشتې ته شرعی عيدمه وايئ اواهل بدعت دربيع الأول مياشتې اويوې مخصوصې ورځې ته شرعی عيدوايې ، دعيد لوازم په کې کوي اودثواب په نيت يې کوي.

دملکونوورځې څوک دثواب اودعبادت په نيت نه لمانځي .

---

(۱):الاعتصام ج ۱ صــ (۱۱۳).

(۱):مصنف عبدالرزاق رقم (۷۸۵۳).

لهذا دا استدلال غلط دی چې حکومتونه ولې دملکونو دازادیدو ورځې لمانځي؟

بله قاعده دتخصیص ده:علامه شامی رحمه الله فرمایلي دي چې (**تخصیص الذکر بوقت لم یرد به الشرع غیر مشروع**)[2].

(**لان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت اوشئ دون شئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد به الشرع لانه خلاف المشروع**)[3].

نو تخصیص به شارع کوي،اودجشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم تخصیص تر ربیع الاول پورې دشارع څخه ثابت نه دی.

بله قاعده په خاصوشپوکې دعبادت په نیت کوڅې اومساجدپه ګلانو پوښل دي:فقهاوو فرمایلي دي چې (**وفی الخاینة رجل أوصی بثلث ماله لاعمال البرهل یجوزان یسرج المسجد منه قال الفقیه ابوبکر یجوز، ولایجوزان یزاد علی سراج المسجد لان ذلك اسراف سواء کان فی رمضان اوغیره ولایزین المسجد بهذه الوصیة ،وفی القنیة واسراج السرج الکثیرة فی السکك والاسواق لیلة البراءة بدعة**)[1].

که یو سړی وصیت وکړي چې زمامال به په نېکو کارونو کې ولګوئ نو د مسجدپه ضروری بلپونو کې یې مال لګولی شي لکن په زائیدو ګلانواوچراغانو کې یې مال لګول جائزنه دی ،همدارنګه په مخصوصو شپو کې لکه رمضان وغیره... کې مسجدپه ګلانو اورڼاګانو پوښل بدعت دی.

بله قاعده، دبدعت فی العبادةده:**بعضې علماء بدعت تقسیموي بدعت حسنه اوبدعت سیئه ته ،اوبدعت حسنه بیاتقسیموي فرض کفائي ته کتعلم علم الکلام اومستحب ته لکه دکتابونو تصنیف اومباح ته لکه په خوراکونوکې**

---

(۲):شامی ج ۱ صـ ۱۷۰ باب العیدین مطلب یطلق المستحب علی السنة.

(۳):البحرالرائق ج ۲ صـ ۱۵۹ باب العیدین.

(۱):البحرالرائق ج ٥ صــ ۳۳۲ قاضی خان ج ۳ صـ (۲۰۳).

توسع ،ددې مثالونو داستقراء څخه معلومېږي چې بدعت حسنه په عاداتو او وسایلو کې راځي ،په عباداتو کې نه راځي[۲].

اوجشن عیدمیلادالنبی صلی الله علیه وسلم ددې میاشتې عبادت ګڼل کېږي،لهذا جشن عید میلادالنبی صلی الله علیه وسلم ته بدعت حسنه هم نه ویل کېږي په عباداتو کې فقط بدعت سیئه دی ،لهذا جشن عید میلادالنبی صلی الله علیه وسلم چې عامه تعلیمی جلسه نه شي اوصرف ذریعه دتعلیم نه وي بلکې ددې میاشتې عبادت شي نوبدعت دی.

بله قاعده په مساجدو کی داشعارولوستل دی: نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یستقادفی المسجدوان ینشدفیه الاشعار، مشکوة ص ۷۰ نبی صلی الله علیه وسلم په مسجد کې دقصاص اخستلو او د اشعارو دلوستلو څخه منعه کړې ده په یوبل مسجدکی دقصاص اخستلواو د اشعارو دلوستلومنعه کړی ده، په یوبل حدیث کی راځی چی نهی رسول الله ص عن تناشدالاشعار فی المسجد، ایضًا.ص ۷۰ حضرت عمر رض دمسجد څخه بهر چوتره جوړه کړې وه، وقال من کان یریدان یلغط اوینشد شعراً اویرفع صوته فلیخرج الی هذه الرحبة څوک چی خبرې کول غواړي یاشعر ویل غواړي یا او از او چتوي، نو دغی چوتری ته دی ووزی حافظ ابن حجر رح فرمایلی دی چه داچوتره ئی ځکه جوړه کړی وه چی څوک مذموم اشعارپه مسجدکی ونه لولی لکن ملاعلی القاری فرمایلی دی چی :وقول ابن حجرای شعراً من مذموما لیس فی محله لانه لایباح مطلقا مرقات ج (۲ ص ۲۲۳) دنبی ص په خوصی حکم حضرت حسان رض او حضرت کعب رض په مسجدکی اشعار لوستل لکن

(۲):الصاعقة المحرقة صـ (۷۰).

بل چاته اجازت نه شته بلکی دمنعې به عاموا حاديثوبه عمل کيږي له دې وجې يوه ورځ حضرت عمر رضی الله عنه حضرت حسان رضی الله ته په مسجد کی داشعارو اجازت ورنکړو، بيائی ابوهريرة رض ته قسم طرفه ورکړوچې آياتادنبی عليه السلام څخه اورېدلي دي له طرفه کافرانو ته جواب ورکړه حضرت ابوهريرة رض چی تصديق وکړو نو بيائی يوائی حضرت حسان ته په مسجدکی داشعارو دلوستلو اجازت ورکړونورچاته نه وو.

(۵):ملاعلی قاری رحمه الله فرمايلي دي چې دنبی عليه السلام دولادت په شپه عبادت دنوروورځو څخه زيات ثواب نه لري.

ددې شپې د عبادت فضيلت د قرآن ،سنت او دعلماوو څخه ثابت نه دی(۱).

**فان قيل**: شاولی الله رحمه الله جشن عيد ميلادالنبی صلی الله عليه وسلم کولو؟

قلنا: داد شاولی الله رحمه الله پورې افتراء ده ،هغه صرف دومره فرمايلي دي چې زه دنبی عليه السلام دپيدائش په ورځ په مکه مکرمه کې دنبی عليه السلام دپيدائش په ځای کې ووم اوډېرفيوضات اوبرکات محسوسېدل.

اوس دنبی عليه السلام دپيدائش په ځای کې کتابخانه ده خلک ورځي برکات اوفيوضات محسوسوي،نو دخلکو راجمعه کيدل دمروجه محفل ميلاد لپاره نه وه بلکی دنبی ص د پيدايش دمقدس او متبرک ځای زيارت لپاره وه او اتفاقی اجماع وه.

همدارنګه دشاه ولی الله رحمه الله والدګرامی شاه عبدالرحيم رحمه الله فرمايلي دي چې مابه دولادت په ورځوکې دايصال ثواب لپاره صدقه کوله

(۱):الموردالروی صـ (٤٣٧).

دايې نه دي ويلي چې مابه دولادت په ورځو کې جلسه جوړوله ،مسجداو کوڅې به مې په ګلانوپوښلې اودزيات ثواب اودتخصيص په نيت به مې جشن عيدميلادالنبی جوړولو.

فايقل: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلی دی چی مارأه المسلمون حسنا فهوعندالله حسن قلنا، په المسلمون کی الف لام استغراقی ندی، بلکی عهدي دی معهود صحابه او ائمه دی ای مارأه الصحابة والائمة حسنافهوعندالله حسن او مروج محفل ميلاد ته صحابه وو او امامانو حسن ندی ويلی.

اتمه مسئله

په قبرونوهرکال عرس کول

سيفيان بريلويان هرکال عرسونه کوي اوعبادت ورته وايې.

دسيفيانو استادالعلماء مولانا غلام فريدسيفی دپيرسيف الرحمان په باره کې لیکلي دي چې (خوداپنے شیخ طریقت اوحضرت مجددالف ثانی کاعرس کراتی ہے )[1].

پيرسيف الرحمان هرکال دخپل شيخ عرس کوي اودمجدد الف ثانی عرس هم کوي.

حالانکې عرس په حنفی فقه کې نشته دی.

(۱):رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې زماقبرعيدمه جوړوئ[2].

---

(۱):معروضات الحاذق صـــ (۱۲).

(۲):مشكوة ج۱ صـ (۸٦).

ددې حديث ډېرې معناګانې دي، (۱):لاتجتمعو للزيارة اجتماعكم للعيد داسې په تداعی او اهتمام سره زيارت ته مه راجمعه کېږئ لکه په اخترکې چې راجمعه کېږئ، او په عرس کې همداسې اجتماع وي.

(۲):المراد الحث على كثرة الزيادة اى لاتجلعوا كالعيد الذى لايأتى الافى السنة

مرقات

يعنې په دې حديث کې ډېر ډېر زيارت کولو طرف ته ترغيب دی يعنې نبی عليه السلام فرمايلي دي چې زما زيارت ته بيا بيا راځئ داسې نه لکه اختر چې په کال کې يو ځل وي او عرس هم په کال کې يو ځل وي.

(۲):علامه ظفراحمد العثمانى رحمه الله فرمايلي دي چې (وامارسوم الصوفية من السماع والاعراس والحلقات ونحوهما فلايعبأبها، قال الشيخ ولى الله رحمه الله وامارسومهم فلاتقوم بشئ الخ[1].

دصوفيانو عادات چې غزلې وايې،عرسونه کوي او حلقې وغيره کوي داکارونه هيڅ اصل نه لري.

شاه ولى الله رحمه االله فرمايلي دي چې دصوفيانورسمونه اورواجونه (عرسونه، غزلې او حلقې)په شريعت کې هيڅ شی هم نه دي.

(۳):الشاه عبدالعزيز المحدث الدهلوى رحمه الله ليکلي دي چې دعرس لپاره دورځې التزام (لکه په دې ملکونو کې چې کېږي چې دمتوفى دوفات په ورځ هرکال عرس کېږي)بدعت دی[2].

---

(۱):اعلاء السنن ج ۱۸ صـ (٤٥٤).

(۲):فتاوى عزيزى فارسى صـ (۸۹).

اوپه بل ځای کې يې لیکلی دي چې که عرس داسې وکړی شي چې په دغه ورځ نوې جامې واغوندې اوپه قبرقوالیانی وشي، اودقبرڅخه طوافونه وشي ،درقص اودسرود مجلسونه منعقدشي نوداسې عرس اوداټول امورحرام اوممنوع دي.

(۴):په تفسیرمظهری کې يې لیکلي دي چې (لایجوزمایفعله الجهال بقبور الأولیاء والشهداء من السجود والطواف حولها واتخاذ السرج الیها ومن اجتماع بعدالحول کالاعیاد ویسمونه عرسا)[۳].

قبرونوته سجده دقبرونوڅخه طواف اوپه قبرونوډیوې بلول اوعرس کول ناجائزدی.

(۵):شاه ولی الله رحمه الله فرمایلی دي چې په غټوبدعتونو کې یودادی چې دقبرونوڅخه میله اوعید جوړکړي.

تفهیمات الهیه ج ۲ صـ۶۴همدارنګه يې فرمایلي دي چې (دیګرازعادات شنیعه مامردم اسراف است درماتمها وسیوم وچهلم وششماهی وفاتحه سالینه)[۱].

زمونږدخلکوپه خرابوعادتونو کې په ماتمونو کې اسراف دی ،همدارنګه دریمه څلویښتمه، ششماهی اوکلني پرګرامونه دي،اوسالینه عرس دی.

(۶):قاضی ثناءالله رحمه الله فرمایلي دي چې (قبوراولیاء بلندکردن وګنبد برآن ساختن وعرس وامثال آن وچراغان کردن همه بدعت است)[۲].

---

(۳):تفسیرمظهری ج ۲ صـ ٦٥٠ (۱).

(۱):تفهیمات ج۲ صـ ٢٤٧ وصیت نامه (۱۳).

(۲):ارشادالطالبین صـ ۲۲ ،صـ ۵۰ طبع ایران.

اوچت قبرونه جوړول په قبر ګنبد جوړول ،په قبر شمعې اوډېوې بلول اوعرس کول ټول بدعت دي.

(۷):شاه اسحاق رحمه الله فرمايلي دي چې (مقرر کردن روز عرس جايز نيست) دعرس لپاره ورځ مقررکول جائزنه دي[۳].

(۸)قاضی ثناء الله پانی پتي رحمه الله وصيت کړی ؤ چې (بعد مردن من رسوم دينوی ،مثل دهم ،سستم ،چهلم وششماهی وبرسينی هيچ نکند )[۴].

زمادوفات څخه وروسته زماپسې لسمه،شلمه ،څلوېښتمه، شپږمياشتنۍ او سالانه (عرس) هېڅ هم ونه کړئ.

(۹):مفتی فريدرحمه الله فرمايلي دي چې دديوبنداودسهارنپورعلماء د عرس کولوڅخه متنفردي اګرچې امربالمعروف اونهی عن المنکرپه کې کېږي ځکه چې دکوم عرس اختيار دبی علمه خلکوسره وي يوه ورځ به خامخا په کې ټنګ ټکور دحاضراوناظر عقيده کېږي[۱].

(۱۰): مفتی تقی عثمانی رحمه الله فرمايلي دي چې دعرس لپاره په شريعت کې هېڅ اصل نشته بلکې بدعت دی[۲].

(۱۱):مولانارشيداحمد ګنګوهی رحمه الله لیکلي دي چې دبزرګانوزيارت ته سفرکول اختلافی دی بعضې علماوو ورته صحيح ويلی دی اوبعضې منع کوي

---

(۳):مسائل اربعين صـ (۳۸).

(۴) : وصيت نامه مع مالابدمنه صـــ (۱۹۱).

(۱):فتاوی فريديه ج ۱ صـ (۳۲۷).

(۲):فتاوی عثمانيه ج ۱ صـ (۱۰۸).

په دې کې نزاع تکرارنه دی په کار مګردعرس په ورځ زیارت ته تلل حرام دي[۳].

فائده: داولیاووسره محبت دالحب فی الله موافق بهترین عمل دی،داولیاوو په نقش قدم تلل دخیراودبرکت باعث دی داولیاوو دوفات څخه وروسته دشرعی قواعدو ماتحت ایصال ثواب اودهغوی درفعې د درجاتو لپاره دعا ءبهترین عمل دی که نږدې وي نودهغوی زیارت ته په ورتللو کې اختلاف نشته اودلری څخه زیارت ته سفرکول اختلافی دی.

لکن دزیارت لپاره ورځ مقررول اوپه معینه ورځ اجتماع اوعرس بدعت دی.

نهمه (۹)مسئله
دمړي پسې دریمه جمعګي
اوومه اوڅلوېښتمه

سیفیان بریلویان دمړی پسې دریمې ، جمعګۍ ،اوومې اوڅلوېښتمې وغیره ته جائزوایي[۱].

حالانکې په حنفی فقهه کې یې هروخت خیرات اوایصال ثواب ته جائزویلی دي اودورځوتخصیص نشته.

داسې نه ده چې په دریمه ،جمعګۍ،اوومه اوڅلوېښتمه خیرات اوایصال ثواب جائزدی اوپه نورو ورځو کې ناجائزدی .

داسې هم نه ده چې په دغو ورځوکې یې ثواب زیات دی اوپه نورو ورځوکې یې ثواب کم دی بلکې د ټولو ورځو خیرات اوایصال ثواب یوشان ته دی .

---

(۳):فتاوی رشیدیه حصه دوم صـ (۲۹).

(۱):جاء الحق صـ (۲٤۱).

اکثرملګری ځانونو ته بریلویان نه وایې لکن بیاهم وایې چې په دریمه ،اوومه یاڅلوېښتمه خیرات اوایصال ثواب بهتردی یایې ثواب زیات دی.

حالانکې په فقهه حنفی کې دریمه ،جمعګی ،اوومه اوڅلوېښتمه په دې نیت چې په دې ورځوکې ایصال ثواب دنورو ورځوڅخه بهتردی یاپه دې نیت چې په دې ورځوکې یې ثواب دنورو ورځوڅخه زیات دی بدعت دی دثواب په ځای ورباندې عذاب دی.

(۱):رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې (**لاتختصوليلة الجمعة بقيام من بين الليالي اه**[۲]).

حاصل یې همدادی چې دجمعې شپه دتهجدولپاره مه خاص کوه بلکې دټولو شپو دتهجدو ثواب یوشان دی.

اوس که یوسړی دجمعې په شپه په دې نیت تهجدکوي چې داشپه بهتره ده نودتهجدو ثواب به یې زیات وي نوداکس بدعتی دی اوداعمل یې بدعت دی دثواب په ځای ورته عذاب دی.

مولانااشرف علی تهانوی رحمه الله فرمایلي دي چې څوک غیرمنقول تخصیص کوي هغه بدعتی دی[۱].

(۲):صاحب دفتح القدیرلیکلي دي چې (**ويكره اتخاذ الضيافة من الطعام من اهل الميت لأنه شرع في السرور لا في الشرور وهي بدعة مستقبحة**)[۲].

---

(۲):مشکوة ج۱ صـــ (۱۷۹).

(۱):اشرف الجواب صـ (۱۱٦).

(۲):فتح القدیر ج ۲ صـ ۱۹۲– (۱٤۲).

دمړی له طرفه دخوراک میلمستیا تیارول منع دی ځکه چې میلمستیا دخوشحالۍ په وخت کې مشروعه ده دغمونوپه وخت کې مشروعه نه ده اوداډېرخراب بدعت دی.

(۳):علامه شامی رحمه الله لیکلي دي چې (**ویکره اتخاذالضیافة من الطعام من اهل المیت لانه شرع فی السرور،وهی بدعة مستقبحة وروی الامام احمدو ابن ماجه بأسنادٍ صحیح عن جریر بن عبدالله قال ((کنانعد الاجتماع الی اهل المیت وصنعهم الطعام من النیاحة))**.

**وفی البزازیة:ویکره اتخاذالطعام فی الیوم الاول والثالث وبعدالاسبوع)**[۳].

دمړی له طرفه دخوراک میلمستیاتیارول منع دي ځکه چې میلمستیا دخوشحالۍ په وخت کې مشروعه ده دغمونوپه وخت کې مشروعه نه ده اوداخراب بدعت دی اوپه مسنداحمداوابن ماجه کې دجریربن عبدالله رضی الله عنه څخه روایت دی چې مونږ(صحابه کرامو)به دمړی خاندان ته راجمع کېدل ،اودمړی د خاندان له طرفه دډوډی تیارولوته نیاحت ویلو.

په فتاوی بزازیه کې دي چې دمړی له طرفه د،اولې،یادریمې یادهفتې څخه وروسته چې کوم خوراک تیارولی شي هغه ټول مکروه اوممنوع دی.

(۴):حضرت قاضی ثناءالله پانی پتی حنفی نقشبندی رحمه الله لیکلي دي چې(بعدمردن من رسوم دنیوی مثل دهم وهشتم وچهلم وشمشاهی وعرس برسینی هیچ نکند[۱].

زمادوفات څخه وروسته هېڅ رسم اورواج ونه کړئ لکه لسمه ،شلمه، څلوېښتمه، ششماهی اوسالانه (عرس).

---

(۳):شامی ج ۲ صـ ۲٤۰ مطلب فی کراهة الضیافة من أهل المیت.

(۱):مالابدمنه صـــ (۱٦۱).

(۵):الشیخ المحدث عبدالحق الدهلوی رحمه الله لیکلي دي چې(وعادت نبود که برای میت جمعه شوند وقرآن خوانند وختمات خوانند برسرگور ونه غیر آن واین مجموع بدعت است، نعم برای تعزیت اهل میت وجمع وتسلیه ودرفرمودن ایشان راه سنت ومستحب است امااین اجتماع مخصوص روزسوم وارتکاب تکلفات دیگر وصرف اموال بی وصیت ازحق تیامی بدعت است وحرام[۲].

همدارنگه یې په شرح سفرالسعادات صفحه ۲۷۳ او اشعة المعات ج۱ صفحه ۷۴۵ کې هم لیکلي دي.

(۷):مولانااحمدعلی سهارنپوری رحمه الله فرمایلي دي چې(**هذا محل تذکر للذین یصرون علی الاجتماع فی الیوم الثالث للمیت ویرونه ارجح من الحضور للجماعة**(۱).

داحدیث دهغو خلکو لپاره دنصیحت مقام دی چې دمړی په دریمه ورځ راجمعه کیږي اودارجمع کیدل دجماعت دلمانځه لپاره دراجمع کیدلوڅخه هم مقدم ګڼي.

(۸):الامام حافظ الدین محمدبن شهاب الکردی الحنفی فرمایلي دي چې ویکره اتخاذالطعام فی الیوم الاول ،والثالث وبعدالاسبوع والاعیاد[۲].

اوله، دریمه،هفتګي اوسالانه(عرس)کول ټول مکروه دي.

(۹): دابن حجرالمالکی الشافعی رحمه الله څخه پوښتنه شوې ده چې (**عمایعمل یوم ثالث من موته من تهئة اکل واطعامه للفقرآءوغیرهم وعمایعمل یوم السابع الخ**..

---

(۲):مدارج النبوت ج۱ صــ (٤٢١).

(۱):هامش ترمذی ج۱ صـ(٤٠).

(۲):فتاوی بزازیه ج ٤ صـ ٨١ طبع مصر.

دمړي په دریمه چې کومه ډوډۍ تیاریږي همدارنګه په اوومه ورځ ددې حکم څه دی؟

هغه ورته په جواب کې فرمایلي دي چې (**جميع مايفعل مماذكرفى السؤال من البدع المذمومة**)(۳).

په سوال کې چې کوم شیان ذکرشول ټول بدعت دی.

علامه ابن عابدین شامی رحمه الله لیکلي دي (**مذهبناومذهب غيرناكالشافعية والحنابلة**)(۴).

زمونږاو دشوافعواو حنابله و همدا مسلک دی(۵).

(۱۰):ملاعلی قاری رحمه الله دعاصم بن کلیب رضی الله عنه دروایت په تشریح کې لیکلي دي چې (قرر اصحاب مذهبنا من أنه يكره اتخاذ الطعام فى اليوم الاول والثالث وبعدالاسبوع)(۱).

زمونږدحنفی مذهب فقهاوو داخبره ثابته کړې ده چې دمړی په اوله ، دریمه همدارنګه دهفتې څخه بعد ډوډۍ اوخوراک تیارول منع دي.

(۱۱):مولانالکهنوی رحمه الله لیکلي دي چې(شیخ محدث عبدالحق دهلوی رحمه الله درجامع البرکات می نویسدوانکه بعدسالی یاششماهی یاچهل روز درین دیار پزندودرمیان برادران بخشش کند وآنرا بهاجی میکویند چیزی داخل اعتبار نیست بهترانست که نه خواند)(۲).

(۳):فتاوی کبری ج۲ صـ ۷ بحواله راه سنت (۲۶۳).

(٤):شامیه ج(١٨٤١).

(٥):بحواله راه سنت مولانا سرفرازخان صفدرصاحب رحمه الله صـــ (٢٦٣).

(١):مرقات ج ٥ صـــ ٤٨٢ بحواله راه سنت صـ (٢٦٥).

(٢):مجموعة فتاوى ج ٣ صـ (٧٦).

شيخ محدث عبد الحق دهلوی رحمه الله په جامع البركات كې لېكلي دي چې په دې ملكونوكې چې په څلويښتمه ياشپږمياشتې بعدياكال بعد كوم خوراكونه پخېږي بهاجی ورته وايې داټول په شريعت كې اعتبارنه لري بهتره داده چې ونه خوړل شي.

همدارنگه مولانا عبدالحی رحمه الله لېكلي دي چې(مقرركردن روز سوئم وغيره بالتخصيص و او راضروری انگاشتن درشريعت محمديه ثابت نيست صاحب بنصاب الاحتساب ان رامكروه نوشته وتراه تخصيص بگزارندوهر روز يكه خواهند ثواب بروح ميت رسانند)[٣].

(١٢):الشيخ المحدث الشاولی الله الدهلوی رحمه الله لېكلي دي چې (ديگرازاعادات شنيعه مامردم اسراف است درماتمها روزسيوم،وچهلم وششماهی وفاتحه سالينه واين همه درعرب اول وجودنبود مصلحت انست كه غيرتعزيت وارثان ميت تاسی روز واطعام شان يک شب وروز رسمی نباشد)[١].

(١٣) علامه نووی رحمه الله لېكلي دي چې(والطعام فی الايام المخصوصة كالثالث والخامس والتاسع والعشرين والاربعين والشهرالسادس والسنة ممنوعة)[٢].

په دريمه،پنځمه، نمه ،شلمه،څلويښتمه ،شپږمه مياشت اوكال بعدخيرات بدعت دی.

(٣):مجموعه فتاوی ج٣ صـ (٧٧).

(١):تفهيمات ج٢ صـــ ٢٤٧ ووصيت نامه صـ (١٣).

(٢):شرح منهاج به حواله راه سنت صـــ (٢٦٥).

(۱۴):دبریلویت بانی احمدرضاخان بریلوی لیکلي دي چې دمړی په اوله ،دریمه،او اوومه باندې دمړی له طرف نه ډوډۍ تیارول مکروه دي، اوبیاېې لیکلي دي چې (ضیافت نمودن اهل میت اهل تعزیت راوپوختن طعام برای همه انهامکروه است به اتفاق روایات چه ایشان رابه سبب اشتغال به مصیبت استعداد وتهیه آن دشوار است پس انچه متعارف شده ازپختن اهل مصیبت طعام را در رسوم وقسمت نمودن ان میان اهل تعزیت واقران غیر مباح ونامشروع است وتصریح کرده بدان درخزانه چه شرعیت ضیافت نزد سرور ست نه نزد شرور وهوالمشهور عندالجمهور)[۳].

بریلویان نن صبا ګیډې په غم کې دخپل مشرد فتوې منلوته هم تیارنه دي.

(۱۵):په فتاوی حقانیه کې دي چې دمړی وارثانوته دایصال ثواب لپاره صدقات هروخت جائزدي لیکن دوخت دتعین چې کوم صورتونه په عواموکې مروج دي لکه جمعګي، دریمه،لسمه،څلوېښتمه اوداسې نورددې تخصیص له وجې شرعاناجائزدي.

ځکه چې دتخصیص اودالتزام له وجې کله کله مباح اوجائزافعال هم ناجائزګرځي.

(۱۶):مفتی محمدفریدرحمه الله فرمایلي دي چې دڅلوېښتمې وغیره خاص کول په دین کې نوی شی پیداکول دي اوممنوع دي اګرچې صرف خیرات غوره عبادت دی[۱].

---

(۳)فتاوی رضویه ج ۹ صـــ (٦٦٢).

(۱):فتاوی فریدیه ج۳ صـ ۱۳۰۰ احکام الجنائز.

فائده:مفتی فرید رحمه الله په رساله قبریه وغیره کتابونوکې لیکلي دي چې ضیافت اوصدقې په مابین کې فرق دی صدقه هروخت جائزه ده اوضیافت تردرې ورځوپورې ممنوع دی.

فائده:دجمهورمسلمانانوپه ایصال ثواب باندې اتفاق دی دمالی عبادت په ایصال ثواب کې دهیچااختلاف نشته اودبدنی عبادت په ایصال ثواب کې بعضې شوافع اومالکیه اختلاف کوي لکن اکثرشوافع اومالکیه دجمهوروسره متفق دي[۲].

لکن دایصال ثواب اودخیرات لپاره شرائط دي:

اول:چې مړی به مسلمان وي.

دوهم :ریااورواج به نه وي.

دریم:ایصال ثواب اوخیرات به دحلال مال څخه وي.

څلورم: دخیرات په مال کې به دصغیروماشومانو اوغائبووارثانوحق نه وي.

پنځم :خیرات صرف غریبانو اومسکینانوته ورکړل شي.

شپږم: دخپل ځان له طرفه په کې دورځوتخصیص دریمه ،اوومه ،څلویښتي وغیره نه وي.

## لسمه(۱۰) مسئله

## نذراونیاز

په حنفی فقهه کې یې نذرته عبادت ویلی دی لهذا دغیرالله لپاره دنذرمنل حرام بلکې شرک دی.

اهل بدعتوپه زیارتونوکې بکسونه لګولي وي اودبابالپاره نذریېورباندې لیکلی وي.

(۲):شرح فقه اکبر صـ ۱۵۷ اوکتاب الروح صـ (۱۴۵).

ثوک چې په زيارت کې ځاروی حلالوي اويا په قبرروفی اچوي يا دنذرپه دغه صندوق کې روفی اچوي دهغه مقصد دادې ولي څخه استعانت اودغه بزرګ ته تقرب اونزديکت وي مقصدېې ايصال ثواب نه وي.

(۱):علامه الوسی رحمه الله فرمايلی دي چې (**وفی قوله تعالی ان الذين تدعون من دون الله لن يخلقوذباباً الحج ۲۲ الخ اشارة الی ذم الغالين فی اولياء الله تعالی حيث يستغيثون بهم فی الشدة عن الله تعالی وينذرون لهم النذور،والعقلاء منهم يقولون انهم وسايلنا الی الله وانما ننذرالله تعالی ونجعل ثوابه للولی ولايخفی انهم فی عواهم الاولی اشبه الناس بعبدة الاصنام القائلين انمانعبدهم ليقربونا الی الله زلفاد، وعواهم الثانية لابأس بها لولم يطلبوا منهم بذلك شفاء مريضهم اوردغايبهم اونحوذلك ،والظاهر من حالهم الطلب ويرشدالی ذلك انه لوقيل :انذروالله واجعلوا ثوابه لوالديکم فانهم احوج من اولئك الاولياء لم يفعلواالخ**)[1].

په دې آيت کريمه کې دهغو خلکو مذمت دی چې داولياوو په باره کې دغلوښکاردي.

دالله تعالی څخه غافله دي په مصايبوکې داولياوو څخه مدد غواړي اوداولياوو په نوم نذراونيازکوي په دې کې پوه خلک وايې چې دغه زمونږلپاره الله تعالی ته وسيله ده.

اومونږدغه نذراونيازالله تعالی ته کوو البته ددې ثواب ولي ته ببښو.

په دې کې هيڅ شک نشته چې دوی په اوله دعوه کې دهغو بت پرستانو په شان دي چې هغوی وايې دبتانوعبادت ددې لپاره کوي چې الله تعالی ته ورباندې نږدې شي.

پاتې شوه دوهمه دوعوه نوپه دې کې به هيڅ خبره نه وه که دوئ داولياوو څخه دخپلو مريضانو لپاره شفاء اودخپلو غايبو خلکو پيدا کول نه غوښتلی.

(۱):روح المعانی ج۲ ص(۲۱۳).

ددوی دحال څخه ظاهره داده چې دوی داولیاوو اوبزرګانو څخه دغوښتلو په نیت نذراونیازکوي.

که دوی ته وویلی شي چې نذراونیازدالله تعالی په نوم وکړه اوثواب یې دولی په ځای خپلو والدینو ته وښه ځکه چې ستاوالدین ددې بزرګ په نسبت ثواب ته ډېرمحتاج دي.

نودغه خلک بیادغه عمل ته تیارنه وي.

ددې څخه معلومېږي چې ددوی مقصدداولیاوو څخه استعانت اواولیاووته تقرب دی.

(۲):علامه شامی رحمه الله فرمایلي دي چې (**کان يقول ياسيدی فلان ان رد غائبی اوعوفی مريضی اوقضيت حاجتی فلك من الذهب اوالفضة اومن الطعام اوالشمع اوالزيت كذا(قوله باطل حرام)لوجوه:منها انه نذرلمخلوق والنذرلمخلوق لايجوز لانه عبادة والعبادة لاتكون لمخلوق.**

**ومنها ان المنذورله ميت،والميت لايملك**

**ومنها ظن ان الميت يتصرف فی الامور دون الله واعتقاده ذلك كفر)**[1].

داولیاوو لپاره دنذراونیازصورت دادی چې څوکووایې چې ای زمافلان پیره که زماغائب خپلوان واپس راغلو یازمامریض جوړشو یازماکاروشو نودومره سره زر دومره سپین زر دومره خوراک یاشمعه یادومره تیل ستالپاره نذرکوم.

دانذراونیازله څووجوڅخه باطل اوحرام دی.

(۱):داچې دادمخلوق لپاره نذراونیازدی حالانکې نذر اونیازعبادت دی اوعبادت دمخلوق ناجائزدی.

---

(۱):فتاوی شامی ج ۲ صـ (٤٣٩).

(۲):داچې دكوم مړي لپاره نذراونيازكوې هغه مړوي اومړدهيڅ شي مالک نه جوړيږي.

(۳):داچې دنذراونيازوركونكى دالله تعالى څخه لاندې اويادالله تعالى څخه بغير دغه ولى اوبزرگ په كارونو كې متصرف گڼي اوداد كفرعقيده ده.

(۳):په فتاوى عالمگيرى كې دي چې (**والنذرالذى يقع من اكثرالعوام بأن يأتى الى قبربعض الصلحاء،ويرفع ستره قايلاياسيدى فلان ! ان قضيت حاجتى فلك من الذهب مثلاكذا،باطل اجماعا**)[۱].

اكثره عوام داسې نذرمنى چې يوزيارت ته لاړشي پرده اوچته كړي او ووايې اى زمافلان پيره! كه تازمادغه مشكل حل كړه نوستالپاره زماله طرفه دومره سره زر نذردي داپه اجماع سره حرام دى.

(۴):امام ربانى مجددالف ثانى فرمايلي دي (وازاين عالم است صيام نساء كه بنيت پيران وبيبيان نگاه دارند واكثرنامها ايشان را از نزد خود ترا شيده روزه ها خود رابنام آنها نيت كنند ودروقت افطار ازبراى هر روز طعام خاصى به وضع مخصوص تعين مى نمايد وتعين ايام نيز مى كنند ازبراى صيام ومطالب ومقاصدخودرابه اين روزه ها مربوط مى سازند وبتوسل اين روزه ها از اين ها حوائج خود مى خواهند ورواى حاجات خود را ازانها مى دانند اين شركت درعبادت است وبتوسل عبادت غير حاجات خود را از غير خواستن است شناعت اين فعل رانيک بايد دريافت)[۱].

(۱):فتاوى عالمگيرى ج ۱ صـ ۲۱٦).

(۱):مكتوبات ج ۳ صـ (۳٦٤).

اوددې قسم څخه دښځوهغه روژې هم دي چې دپيرانو اوديبيانو په نوم يې نيسي اوددوئ اکثره نومونه دخپل طرفه تراشي په خپلوروژوکې ددوی په نوم نيت کوي.

اودهرې روژې په افطارکې يوخاص طعام په مخصوصه طريقه مقرروي، اودروژو لپاره دورځوتعين هم کوي اوخپل مقاصد اومطالب ددغه روژو پورې تړي ،اوددې روژوپه وسيله ددغه پيرانوڅخه خپل حاجتونه غواړي اودخپلوحاجتونو پوره کېدل داولياوو له طرفه ګڼي چې داپه عبادت کې شرک دی.

اودغيرالله دعبادت په ذريعه خپل حوائج غواړي،ددې کاربدی بائد په ښه طريقه وپېژندل شي.

(۵):علامه ابن نجيم مصری اوعلامه ابن عابدين الشامی رحمهم الله لېکلي دي چې (**قوله بأطل وحرام، لوجوه منها:انه نذرلمخلوق والنذرلمخلوق لايجوزلانه عبادة والعبادة لاتکون لمخلوق.**

**ومنه ظن ان الميت يتصرف فی الامور دون الله واعتقاده ذلك كفر**)(۲).

دماتن قول چې باطل اوحرام دی داله څو وجهوڅخه:يوداچې دامخلوق ته نذردی اونذرلغيرالله جائزنه دی ځکه چې داعبادت دی اودغيرالله عبادت جائزنه دی بله داچې که دده داګمان وي چې مړی په اموروکې متصرف دی نوداد کفرعقيده ده.

---

(۲):البحرالرائق ج ۲ صـ ۳۲۱ شامی ج ۲ صــ ٦٦٠ کتاب الصوم مطلب فی النذر الذی يقع للاموات.

۶-قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمایلي دي چې (پس نذرکردن برای اولیاء جائزنیست که نذرعبادت است واګرکسی نذکرکرد وفاء نذرنه کند که احترازمعصیت بقدرامکان واجب است)[1].

یعنې اولیاوو ته نذرجائزنه دی ځکه نذرعبادت دی اوکه چانذرمنلی هم وي نودهغې پوره کول جائزنه دي ځکه چې داسې نذرمعصیت دی اودمعصیت څخه ځان ساتل په قدردامکان واجب دی.

(۶):حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله لیکلي دي چې(**انهم یستعینون بغیرالله فی حوائجهم من شفاء المریض وغناء الفقیروینذرون لهم یتوقعون انجاح مقاصدهم بتلك النذرویتلون اسماءهم رجاء برکتها فأجب الله تعالی ایاك نعبدوایاك نستعین وقال تعالی:فلاتدعومع الله احد،،الجن۱۸ : ۷۲**.

**ولیس المراد من الدعاء والعبادة کما قال المفسرون بل هو الاستعانة لقوله تعالی: بل ایاه تدعون فیکشف ماتدعون،،الانعام؛۴۱ایه**)(۲).

مشرکانودخپلو حاجاتو لپاره مثلا: دمریضی څخه دشفاء دغریبۍ څخه دمالدارۍ لپاره دغیرالله څخه مددونه غواړي، اود اولیاوو په نوم نذر اونیازکوي اودا امیدلري چې په دغه نذر اونیاز سره ددوی حاجتونه پوره کیږي ،اودبرکت لپاره دهغوی نومونه هم لولي.

نوالله تعالی په دوی لازمه کړه چې په هرمونځ کې (**ایاك نعبدوایاك نستعین**)ولولي.

همدارنګه یې فرمایلي دي چې (**فلاتدعومع الله احدا**) ددې دعاء څخه عبادت مرادنه دی.

(۱):ارشادالطالبین صـ (٤٦).

(۲):حجة البالغة ج ۱ صـ (۱۸۵).

بلکې استعانت ترېنه مراد دی **(بل ایاه تدعون فیکشف ما تدعون)**

(۷):علامه محمدبن علی حصکفی حنفی رحمه الله لیکلي دي چې **(واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من أکثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربا الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام)**.

پوه شه چې هغه نذرچې اکثرعوام يې مړوته کوي او اولیاوو ته دتقرب په نیت چراغونه اوتیل وروړي په اجماع سره باطل اوحرام دي.

فانقیل:چې نذرپه دوه قسمه دی (۱)شرعی نذردی(۲)لغوی نذردی اولیاوو ته لغوی نذرکیږي اوپه شرعی نذرکې الله تعالی ته نذرمنل کیږي اوپه لغوی نذرکې اولیاوو ته نذرمنل کیږي[1].

قلنا:دا باطل فرق دی دا داسې دی لکه یوکس چې غیرالله ته سجده وکړي اوبیاووایې چې دالغوی سجده ده.

اویادقبرڅخه طواف وکړي اوبیاووایې چې دالغوی طواف دی غیرالله ته لمونځ وکړي اوبیاووایې چې دالغوی مونځ دی.

فائده:په **(انما الصدقات للفقرآء)**کې (لام) دعبادت اودتقرب نه دی بلکې (لام ) دمنفعت دی.

## یوولسمه (۱۱) مسئله
## دغیرالله په نوم حیوان ذبح کول

(۱):داحنافوپه نیزدیوبزرګ اودیوولی دتقرب اودخوشحالولو لپاره دحیوان ذبح کول حرام دي لکه اکثرخلک زیارتونوته څاروی بیایی اوهلته دولی دتقرب اودخوشحالولو لپاره ذبح کوي نوداحرام دی اوداغوښه نجسه ده.

(۱):جاء الحق صـــ (۳۰۷).

(۲):الله تعالی فرمایلي دي چې(**وماأهل به لغیرالله**)په لغیرالله کې (لام)دعبادت اودتقرب لپاره دی بعضې خلک وایې چې مونږهلته ځاروی دالله تعالی لپاره ذبح کوو اوغوښه یې په فقیرانوتقسیموو نودابه هلته ومنلی شي چې دده په عقیده کې زیارت ته وړل اومدرسې ته وړل یوبرابروي همدارنګه ځاروي اوغوښه وړل ورته یوبرابروي حالانکې داسې نه ده دغوښې په وړلوېې تسلي نه کېږي ترڅوېې چې هلته حیوان نه وي ذبح کړی.

فائده: په وما(**اهل لغیرالله**)کښې لام دعبادت اودتقرب اوفرح لپاره دی یعنې هغه ځاروی حرام دی چې غیرالله ته دعبادت اوغیرالله ته دتقرب اودغیرالله دخوشحالولو لپاره ذبح شي.

اوپه (**انماالصدقات للفقراء**)کې لام دمنفعت لپاره دی چې حیوان دالله تعالی دعبادت اودتقرب په نیت ذبح شي اونفع یې فقراءوو ته ورسېږي.

(۳):حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله فرمایلي دي چې حیوانات (**راازمشائخ میکنند وبرسر قبرهای ایشان رفته آن حیوانات راذبح می نماید در روایات فقهیه این أمر رانیزداخل شرك ساخته أندودراین مبالغه نموده واین را أزجنس ذابح جن انه اشته اند که ممنوع است وداخل دائره شرك**)[1].

حیوانات دمشائخو په نوم کوي قبرونه ته یې وړي اوهلته یې ذبحه کوي داهم دفقهی روایاتو مطابق په شرک کې داخل دي اوپه دې کې فقهاوو مبالغه کړې ده اودغه ذبحه یې دجن په نوم دذبحې مترادف ګڼلې ده چې داممنوع اودشرک په دائره کې داخل دی.

(۱۴):شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمایلي دي چې (**قال العلماء لوان مسلما ذبح ذبیحة وقصد بذبحها التقرب الی غیرالله تعالی صار مرتدا وذبیحته ذبیحة مرتد**)[1]

---

(۱):مکتوبات دفترسوم مکتوب (٤١).

(۱):فتاوی عزیزی فارسی صـ (۲۱).

که يو څوک دغيرالله دتقرب په نيت څاروی ذبح کړي نو مرتد ګرځي او ذبيحه يې دمرتد ذبيحه ده.

مخکې ئې لیکلي دي چې داسې خلک هم شته چې ځانونو ته مسلمانان وایې اوپه واقع کې شرک کوي داخلک کفراو داسلام یو دبل سره خلطوی ، کله داسې کوي چې حیوان غیرالله ته دتقرب په نیت ذبحه کوي او دذبحې په وخت کې دالله تعالی نوم اخلي،نودالله تعالی دنوم اخېستلو څخه په ظاهره کې دارامعلومېږي چې په اسلامی طریقه یې ذبحه کوي حالانکې په واقع کې داهم کفردی، ددې خلکو داګمان دی چې صرف الله اکبروو ایه بیاکه دې دالله تعالی دتعظیم نیت وي او که دغیرالله دتعظیم نیت وي[2].

بیائی مخکې لیکلي دي چې (ذبحه کردن جانوربنام غیرخدا خواه پیغمبرشد خواه ولی، خواه شهید، خواه غیرانسان حرام است واګر به قصد تقرب بنام اینها ذبح کرده باشد ذبیحه آن جانورهم حرام و مردرامیشود وذبحه کننده مرتدمیشود )[3].

که دغیرالله په نوم حیوان ذبحه شي پیغمبروي ،که ولی وي او که شهیدوي او که دانسان څخه بغیر ملائکه یاپیری وي دا ذبیحه حرامه ده .

او که دغیرالله دتقرب لپاره حیوان ذبحه شي نوداذبحه حرامه او مرداره ده او ذبحه کونکی مرتد ګرځي.

---

(۲):فتاوی عزیزی فارسی صـ (۲۳).

(۳):فتاوی عزیزی فارسی صـ (۳۹).

## دولسمه(۱۲) مسئله
## دجنازې ځخه بعددعاء

(۱):علامه على بن عثمان تميمى رحمه الله (المتوفى سنة **۵۶۹** هـ)ليکلي دي چې :(اذافرغ من الصلاة لايقوم بالدعاء)[1].

چې کله د جنازې دلمونځ ځخه فارغ شى نو ددعا لپاره به نه اودرېږئ.

**(۲): حافظ الدين محمدبن محمدبن شهاب بن يوسف الكردى البريقينى الخوارزمى المعروف بزازى يأابن البزاز الكردى الحنفى رحمه الله (المتوفى سنة ۸۲۷ هـ)** ليکلي دي چې : **(لايقوم بالدعاء بعدصلاة الجنازة لانه دعامرة)**[2].

(۱):فتاوى سراجيه صـ (۱۳۳).

(۲):فتاوى بزازيه ج۱ صـ ۵۳ دارلفکربيروت.

دجنازې دلمونځ څخه وروسته به ددعالپاره نه اودرېږي ځکه چې یوځلې دعاکړې ده.

(۳):ملاعلی قاری الحنفی رحمه الله (المتوفی سنة ۱۰۱۴ هـ)لیکلي دي چې:

**(ولایدعوللمیت بعدصلاة الجنازة لانه یشبه الزیادة فی صلاة الجنازة)**[۳].

دجنازې دلمونځ څخه وروسته دمړي لپاره دعامه کوه ځکه چې دادجنازې په لمونځ کې دزیادت سره مشابه دی.

(۴):په ذخیره او محیط کې دي چې :**(لایقوم بالدعاء بعدصلاة الجنازة)**.

دجنازې دلمونځ څخه وروسته به دجنازې لپاره نه اودرېږي.

(۵):علامه ابن نجیم الحنفی رحمه الله لیکلي دي چې :**(ولایدعوبعدالتسلیم)**[۱].

دسلام څخه وروسته به دعانه کوې.

(۶):دابن حامد څخه مروی دی چې :**(ان الدعاء بعدصلاة الجنازة مکروه)**

دجنازې دلمانځه څخه بعد دعامکروه ده.

(۷):دحضرت المجدد الف ثانی دجنازې سوانح نګارداسې لیکلي دي:

(حضرت مخدوم زاده بزرگ خواجه محمدسعیددامت برکاته امامت نمازجنازه پیروپدر بزرگوار خودرضی الله عنه نمودندوبعدازنماز برائی دعای توقف

---

(۳):مرقاة المفاتیح ج ۹ صـــ ٤٩ مکتبه رشیدیه کویته.

(۱):البحرالرائق ج ۲ صـ ۳۲۱ درالکتب العلمیة بیروت.

نفرمودند که مقتضی سنت چنین نیست ودرکتب فقهیه معتبره مرقوم ست که بعدازنماز جنازه ایستاده دعاکردن مکروه است[۲].

(۸):مفتی محمدفریدرحمه الله بعدکسرالصفوف ،صرف جائزورته ویلي دي اوییایې صراحتالیکلي دي چې بهتره داده چې بعدکسرالصفوف هم دعاونه کړل شي.

# پای

## فهرست



(۲):برکات احمدیه فارسی صـــ (۲۹۹).